رامنکلو اوخوېولو خپل ځان بوتو اودګیاه ګانو منځ ته ورسولو ، دکمونستی حکومت عسکر اوروسان راغلل یوه خوا اوبله خواوګرځېدل لیکن زه ئی ونه لیدم له ډیروخت تیریدلو وروسته قوا ولاړه زه تنها په ځنګل کی پاتی شوم شپه راپاندی راغله پښې می دردهم کولو اوله ځناوروڅخه هم ډاریدم خوشپی تیاره کی یو سپین ږیری سړی چی نه می پیژندلو راغی له ماسره کښیناست داډئی راکړ اوپه زخم ئی راته لاړی ( دخولی لعاب ) پوری کړی دردمی ورك شو زما سترګوته خوب راغی بیده شوم چی کله راوېښ شوم نوسپین ږیری سړی نه وو زخمونه اوپښه می روغه وه هیڅ دردئی نه کولو نوزه ډیر په ارامی اوډاډ سره راروان شوم دادی په خیر اوخیرت ستاسی ترڅنګ راورسیدم چی اوس می هم نه پښه دردکوی اونه کوم بل تکلیف حس کوم اوپه دی هم نه پوهیږم چی هغه سپین ږیری سړی څوك وو اوکوم طرف ته ولاړ.

---

محمداجان دلوګرولایت دازری ولسوالی دکڅ دکلی اوسیدونکی دی .

## دشهید مصافحه

دصوابی په کمپ کی یو ملاصاحب دخپلو سترګولیدلی حال په دی توګه بیانوی اووائی چی ماوغوښتل دخوست په جنګ کی ځان شریك کړم دتللو اراده می وکړه خوزما د کور ترڅنګ دیو بل چا کوروو اوهغه ایکی یو زوی درلوده نور اولادونه ئی نه وو نو دهغه دی زلمی ځوی دپلار څخه پټ ماته وویل چی ملاصاحب زه هم درسره جهاد ته ځم هیله ده چی مابه له ځان سره بوزی وائی زه حیران شوم چی اوس څه وکړم که داهلك له ځان سره نه ولم

گناه ده اوکه ولم ئی نوداسی نه چی څه خطرورته ورسیږی بیا به ئی دمور اوپلار له جنجال څخه نه خلاصیږم خوبلاخره دثواب اوخدای «ج» دحکم لارمئ غوره کړه دا زلمی هلك می له ځان سره روان کړ دجنګ صحنی ته ورسیدلو مونږ دواړو په تعرض کی شرکت وکړ چی په جګړه کی دازلمی راڅخه ولګید اوپه شهادت ورسید نوزه ډیر پریشان اوغمګین شوم چی ای خدایه «ج» اوس څه چاره وکړم دمور اوپلار ځواب به ئی څنګه شی هغوی ته به څنګه تسل ورکوم خوزړه نازړه می په موټر کی کیښود ترڅو کورته ورسیدلو هلته می دشهید پلار خبر کړ هغه چی خپل شهید ځوی ولیدلو نوداللّه «ج» شکر ئی اداکړ اوخپل زوی ته ئی دشهادت مبارکی وویله ، جنازه موراکوزه کړه اوشهید موکورته داخل کړو هلته ئی مورهم خبره شوه دیر شور ، فریاد ، چیغی اوانګولانی شروع کړه زه هم حیران ولاړ ووم مورئی په هیڅ شان نه غلی کیده اخر چی څه وخت تیر شو زه دشهید شوی زلمی ترڅنګ ودریدم مورئی هم سرته ناسته وه اوپلارئی هم خواته ولاړوو ، ماورته دزړه له جوشه په غیرارادی شکل اوازوکړ که ته واقعی شهید ئی نودمور اوپلارتسل لپاره دی له پلارسره مصافحه وکړه هغه شهید یو دم خپل لاس اوچت کړ اوخپل ښی لاس ئی دخپل پلار په لاس کی په داسی شکل ورکړ تابه ویل چی مصافحه کوی .

نوددی حالت په لیدلو سره ئی مور اوپلار خوشحاله شو سمدستی ئی ژړااوفریاد بس کړ .

ملاصاحب وائی چی له دی وروسته به دشهید مور اوپلار ماته تسل راکولو اوماته به ئی ویل چی ملاصاحب ته مه خفه کیږه دا داللّه«ج» رضاده

دهغه خپل مال وو زمونږ دخدای «ج» رضا قبوله ده مونږ دهغه په شهادت فخر کوو .

---

دواقعی روایت محمد اجان کړیدی اوهغه له ملاصاحب څخه خپله اوریدلی دی .

## مجاهدینوسره غیبی امداد

مجاهد عبدالوکیل وائی چی ماته یو مولوی صاحب دلوګردعملیاتو څخه دیو عملیات قصه په دی توګه کړیده :وائی چی یوه ورځ زمونږ دمجاهدینو چی تعدادی ئی هم ډیر کم وو له خوا تصمیم ونیول شو چی لاره به بندوو اودقوری دتلو مخه به نیسو مونږ همداسی وکړل سرك ته ولاړو لاره موبنده کړه خوددښمن یوه لویه قوأ راغله مونږ ورسره جنګ شروع کر ښه ډیر جنګ مو وکړ قوأبیرته واپس وتښتیدله مونږ ورڅخه ډیر روسان مردار کړل اوډیر ټانکونه اوموټر موورڅخه وسوزول کله چی واپس راتلو دلاری به اوږدو کی یو نابلد اوبوډا سړی زمونږ ترنظر شوله هغه څخه موپوښتنه وکړه بابا جانه په دی درزاودروز کی دلته څه کوی اوله کوم لوری راغلی هغه وویل چی بچیانو تاسی ډیرکم واست ستاسی دکومك لپاره راغلم په جنګ کی له تاسو سره شریك ووم ، مونږوزرته وویل ته ددی خبری څه ثبوت لری هغه خپل ځان وخوزولو چی داوسپنو پارچی اومرمی ئی له بدن څخه ولویدلی اوپه ځمکی ګذارشوی جامی ئی هم په مرمیو سوری سوری اوغلبیل غلبیل وی نوکله چی په لاری لاری تلو دا بوډا راڅخه غائب اونادرکه شو.

---

عبدالوکیل اوس دبدبیری په کمپ کی استوګن دی .

## دشهیداوښکی اودوینی جریان

په ۱۳٦٤ کال چی کله دلوګرولایت دازری ولسوالی اودپکتیا ولایت ځاځیو ته کومه قوأراغلی وه نو په لارو ، درو ، کلیو اوبانډوکی ئی پرسونل ضد مینونه ښخول اوهرډول ظلم اونارواځخه یی ډډه نه کوله نودپیښورڅخه دهغوی دټکولو لپاره ډله ډله مجاهدین راغلل اودسپینی شګی الفتح په غنډ کی جمعه شول اوله هغه ځای څخه ئی دازری په لورحرکت وکړ کله چی داوښتی دری ته ورسیدل نوهلته په یو نفر مجاهد چی ملاګلاجان نومیده پرسونل ضد ماین والوت اوپه ۱۰-٦-۱۳٦٤ نیته په شهادت ورسید هلته دبعضی مشکلاتو له وجهی ښخ کړل شو یوه میاشت وروسته ئی وارثانو تصمیم ونیولو چی خپلی جامع هدیری ته ئی نقلوو ، هغوی ورغلل قبرئی لوڅ کړ کله ئی چی له قبر څخه رابهر کړ نواندامونه اوجسد ئی هیڅ تغیر نه وو کړی ډیر ښه معطر بوی ورڅخه پورته کیده اوله زخمونو ئی وینی جریان وکړ کله چی دهغه ځوی سلطان محمد (هغه هم اوس په جلال آباد کی په شهادت رسیدلی ) دخپل شهید پلار سرته ودرید نوخپل پلار ته په ژړاشو چی پدی حالت کی ئی دپلار له سترګو هم اوښکی روانی شوی کله ئی چی زوی غلی شونو دشهیداوښکی هم بندی شوی .

---

ددی واقعی شاهدان یوه ډله مجاهدین دی لکه ملاخیال جان ، حاجی محمد نبی ،سلیم خان ...

## له ناستی څخه څملاستیدل

یو نفر مجاهد چی محمدګ نومیږی وائی : په ١٣٦٣کال چی کومه قوأ دپکتیا ولایت ځاځیو ته راغلی وه اودسخت بمبارد ، توپونواومرمیو وحشیانه باران ئی جوړ کړی وو نو دسرګل په منطقه کی یو نفرمجاهد چی نقیب الله نومیده په شهادت ورسید دمرمیو دباران له کبله اودملحد رژیم دعسکرو اووحشی روسانو د پیاده کیدو له کبله له مونږ څخه شهید هملته پاته شوپه اومه ورځ چی قوأ دمجاهدینو دقربانیو له کبله بیرته وتښتیدله نو مونږ هم خپل شهید پسی ورغلو څه ګوروچی شهید په تکیه شوی توګه ناست دی زمونږ له ورتګ سره سم هغه څملاست ، لاسونه اوپښی ئی وغځول ، سترګی اوخوله ئی بنده کړه .

---

محمدی اوس ، اوس دکچه ګړی په کمپ کی اوسیږی .

## دپلار په غاړه دشهیدلاسونه

محمدی نومی مجاهد وائی چی په ١٣٦٥ کال دکنړله لاری دننګرهار ولایت بهسودوته تلم دبنیوی ولسوالی ته چی ورسیدم نوهلته دمجاهدینو یودولس کسیزګروپ دکمونستانو له محاصری لاندی واقع شوی وو، ددوارو خواوو ترمنځ سخته جګړه روانه وه دډیرو کمونستانواوداخلی نوکرانو له منځه وړلو څخه وروسته له مجاهدینو سره مرمی ختم شوی خبره لاس اوګریوان ته

ورسیده چی دی کی هم ډیر خلیقان اوپرچمیان په هلاکت ورسیدل بلاخره دغه دولس کسه مجاهدین هم ټول په شهادت ورسیدل ، په دی شیهدانوکی څو کسان دبهسودو دمنطقی وو دکلی خلك راغلل دهرچا جنازی ئی خپلو خپلو کلیوته نقل کړی نوکله چی زه بهسود وته ورسیدم یو شهیدئی هلته ښخولو کله چی شهید قبر کی کیښودل کیده یوسړی راغی اوشهید ئی قبرته ښکته کړ لیکن له سترګو څخه ئی لپه لپه اوښکی روانی وی په دی حالت کی شهید ددی سړی له غاړی خپل لاسونه چاپیرکړل اوځان ته ئی رالنډ کړ هغه سړی ورته دشهادت مبارکی وویله اوله سترګو څخه ئی داوښکو باران هم ودرید ، په دی کی خلکو ورڅخه پوښتنه وکړه چی بابا داڅه چل دی ؟ هغه وویل چی داشهید زما زوی دی زه له ملحدانو څخه ډاریدم ویل می هسی نه چی دستګیر می کړی نودی واقعی سره اوس زما خفګان اوغم ختم شو اوله زړه څخه می ډار هم ورت نو دی شهـید هم دهغه له غاړی خپل لاسونه خوشی کړل .

( والله اعلم )

## مجاهدین په سپینو جاموکی لیدل

کله چی په ١٣٦٣ کال له کابل حخه دروسانو اوداخلی کمونستانو مشترکه قوأ دپکتیا ولایت د ځاځیو ولسوالی کی دمجاهدینو دپرتو مرکز ونو داشغال په نیت راغلی وه نوهلته دخوشپو ورځو مسلسل جنګ ورروسته قوأ په داسی حال بیرته وتښتیدله چی ډیر روسان اوداخلی کمونستان ئی مردار ، دیر ټانګونه تخریب اوډیر توپونه ، جنګی وسایل اوموټر ورڅخه

دجنگ په میدان کی پاتی اومجاهدینو په غنیمت ونیول چی یو تعداد عسکر اوملحد رژیم صاحبمنصبان هم دسپینی شگی دالفتح غنډ دمجاهدینوله خوا ژوندی راوستل شو نو کله چی له هغوی څخه دجنگ دصحنی اودروسانو دشکست ( ماتی ) په باره کی عوامل وپوښتل شو نو هغوی وویل چی کله به مونږ تعرض کولونومونږ به لیدل چی ډلی ډلی مجاهدین زمونږ مقابلی ته راروان دی ، ټول ښه دنگ دنگ اوښکلی زلمی اوډټولو به سپینی جامی په تن وی مونږ به چی هغوی هرڅومره حصارول لیکن هغوی به نه حصاریدل دهغوی دلاوری اوشجاعت په مونږ لوی تاثیر وغورځولو چی مونږ ئی ماتی اوشکست ته مجبورکړو نو اوس چی مونږ دلته راغلی یو ستاسی په منځ کی په هغی قواری ، په هغه شکل اوهغه رنگه سپینو جامو والامجاهدین نه گورو .

---

په یومسجد کی دملادوعظ په وخت کی واوریدل شوه (مؤلف)

## له بند څخه په ډاگه راوتل

یونفر چی عمراخان نومیږی دځپل یو کلیوال قصه کوی اووائی چی زما یو کلیوال چی الف خان نومیږی په ۱۳٦٤ کال دپلخمری دقرغی په منطقه کی دکمونستانو له خوا ونیول شو اودهغه ځای په یو نژدی قرار گاه کی بندی شو څلویښت شپی هلته بندئ اودسخت نظارت اوڅارنی څخه لاندی وو .

وائی چه الف خان ماته له بند څخه ورروسته دځان دخلاصی قصه دارنگه

وکړه چې کله بند يخانه کې ووم نوهره شپه به مې شل ديرش رکعته نفلی لمونځ کولو يوه شپه مې تصميم ونيو لو چه له بند څخه به تښتم نويوه ورځ په تيکنده غرمه له جيل راووتلم اوبهر لورته مې حرکت پيل کړ چې وړاندې مې وکتل نو اوه (۷) ځايه پهره ولاړه وه زه داول پهره دار په لوز وخوځيدم چې هغه ته ورلنډ شوم سلامې ئې راته ووهله اوديو منصبدار په قسم ئې راته رسم تعظيم وکړ په دې توګه دوهمې ، دريمې اوهرې پهرې ته به چې ورتلم سلامې ئې راته وهله اوزه تيريدم بلاخره کله چې ورروستې اواخرې پهرې ته ورسيدم نو هلته هم ماته رسم تعظيم وه شو اوتيرشوم نو کله چې بيرون ووتلم دهغه ځاى يو نژدې کلې ته ولاړم په يو کورکې مې شپه شوه هغه کوروالازما ديرعزت وکړ اوپه سبا ورځ ئې زه په خپل جيپ موټر کې کښينولم اودموټړو هډې ته ئې ورسولم هلته په موټرکې سپورشوم اودکابل په لورمې حرکت وکړ هرځاى به چې تلاشې کيدله زه به ئې نه تلاشې کولم پدې ترتيب کابل ته ورسيدم ، له کابل څخه لوګرته اوله لوګرڅخه خپل کورته ورسيدم چې دلارې په اوږدوکې نه راته کوم تکليف رسيدلى دى اونه چاحصارکړى يم حال داچې زه د عسکرى وړووم اوزما په څير نفر وپسې به هرځاى اوپه هرچوك کې عسکر ګرځيدل خوماته الله تعالى په خپل فضل اوکرم دهغوى له شر څخه پوره پوره نجات راکړ.

---

عمراخان په قوم زمانخيل دى اوماته ئې د يوګروپ مجاهدينوپه حضور داقصه کړيده اوس دسدى په کمپ کې اوسيږى اوداستاد سياف دځاځيو په غنډ کې يوه پوسته هم لرى .

## دکمونیست رژیم دپولیسو نابینائی

یو مولوی صاحب چی فیضان نومیږی دخپلو سترگولیدلی واقعه داسی بیانوی چی دکابل کمونست رژیم درامنځته کیدو په وخت کی زه هلته په یوی مدرسی که استاذ ووم کله چی هلته دکمونستانو ددوددستور سره سم دعلماء کرامو اواستاذانو دنیولو ، زورو ولو اوشکنجه کولو لړی پیل شوه نوزه هم له تعقیب لاندی ونیول شوم یوه ورځ راپسی دخاد له خواپولیس راغلل لیکن ماته اطلاع وشوه اوزه له خپل ځای څخه زما دیو استاذ کورته ولاړم خوهلته هم راپسی پولیس راغلل زه اوزما استاذ دهغه په حجری کی ناست وو چه دروازه راوټکیدله استاذ می بیرون ورغلو اوبیرته راغی ماته ئی وویل چی پولیس راغلي اوتلاشی کوی دلته خواوس تادستگیروی څه چل وکړو ؟

ماورته وویل چی بله چاره نشته په خدای «ج» توکل زه همدلته په حجری کی کښینم چی هرڅه کیږی دالله«ج» رضابه وی په دی حال کی پولیس راوختل اوپه تلاشی ئی پیل وکړ بلاخره پولیس حجری ته راغلل هلته ئی یو خوا اوبله خوا وکتل اومابه په ځان دایت الکرسی ایتونه دمول اوبارېار می لوستل نوبو پولیس بل پولیس ته وویل چی دلته خو هیڅوك هم نشته حال دادی چی زه هلته په یو کنج کی غلی ناست ووم ، نو کله چی پولیس واپس ولاړل نوزه راوتلم اودقلعچی اوبنی حصار له لاری خپل ځای ته روان ووم چی هلته دقلعچی په مقام بیا هماغه پولیس ولاړوو اومابه له ځان سره ایت الکرسی ایتونه لوستل اودمول په داسی حال کی چی هغوی راته رډرډ کتل اوزه ورڅخه ولاړم نه ئی راباندی غرض وکړ اونه ئی راحصار کړم ، بلاخره

خپل کورته ورسیدم اودهجرت په بختوره لار وروورگاونډی هیواد پاکستان ته مهاجر شوم .

---

مولوی فیضان داسلامی تحریك سرخیل اوستر عالم دین دی ، دحزب اسلامی په بیلو بیلو پوستونو کی ئی مسئولینوته اووظائف اجرا کړیدی اوپورتنی قصه ئی په داسی حال کی بیانوله چی دالفتح په غنډ کی دمجاهدینو او قوماندانانو یوه اجتماع جوړه شوی و ه .

## دشهید په لمس کولو دخوشبوی اثر

مولوی عزیزالرحمن دعبدالله «عزام» شهید یولیکلی اثر له مخی دهغه قصه دارنگه بیانوی چی عبدالله«عزام» له مجاهدینو سره جهاد ته ولاړ اوهلته ورته یو مجاهد زخمی شو ، عزام وائی چی مامجاهد پشاورته راوړ اوهلته می دبدرهسپتال کی دتداوی لپاره داخل کړ دشپی ناوخته دغه زخمی شوی مجاهد شهید شو اوزه کورته ولاړم کله چی کورته ورسیدم نو دکور ټولو غړوراته وویل چی څه ښه خوشبوئی دی استعمال کړیده ماورته وویل چی ماخو په خپل لباس اوجامو هیڅ خوشبوئی اوعطر نه دی استعمال کړی لیکن هغوی په دی خبری اصرار کولو چی نه ستاله بدن څخه ډیر ښه بوی هسکیږی په سبا ورځ چی کله هسپتال ته دشهید دتدفین په خاطر ولاړم نوله هغه څخه ډیر ښه معطر بوی پورته کیده چی ماهیڅ کله چیرته داقسم خوشبوئی نه وه لیدلی چی ددی خوشبوئ اثر دیوی هفتی پوری زما په بدن کی موجود وو .

بسم الله الرحمن الرحیم

## دمؤلف پیلامه

بی له شکه باید وویل شی چی په ننی عصر اوزمانه کی د روس په شان جاه طلب ، خونخوار، جابر اوددوی په خوله شکست نه خوړونکی سره فوځ ته دتش لاسوخوړپه خدای «ج» مینو ، دایمان او عقیدی په وسلی سنبال قوم ننګیالیو افغان مجاهدینو په لاس شکست ورکول اوپه شرمیدلی توګه له ګران اسلامی افغانستان څخه دهغوی شړل دخدای «ج» له کومك ، دافغانی شهیدانو اوماهدینو له کرامت او مرتبی څخه پرته ممکن نه وو .

تاسو ولیدل چی دغه دافغانستان ددایمی اشغال اودهند سمندرته درسیدو په امید په اصطلاح سوپرپاور څنګه له ماتی؛ شکست اونابودی سره مخ شو ، دهغوی هغه زور ، سحر اوطلسم دالله «ج» په کومك دافغانی باتوراومیړنی قوم په لاسوډړی وړی اوخاوری ایری شو چی بلاځره ددایمی زوال ، ماتی اورسوائی سره مخ شو .

دهمدی جهاد ، دحق اودباطل دمعرکی په برکت ، دکمونیزم زوال ، دوېرو کمونستی هیوادونو ازادی ، دروس په داخل کی دازادی دتحریکونو پیل اودهغوی څخه دمحکومو اسلامی هیوادونو بیلیدل دسوسیالیزم اوکمونیزم له

## غيبي رنها ليدل اوكتل

يو نفرمجاهد چې سنك نوميږي دخپلو سترگوليدلى حال داسي بيانوي
چې مونږ په ۱۳٦۲ كال دجدي په ۱۲ نيټه دكوزكونړ دښيوي ولسوالي
دملحدينو په يوې پوستي عمليات درلودل چې دا پوسته په كونده كي وا
وه سبه ډيره جگړه مووكړه ډير ملحدين موجهنم ته وليږل زمونږ سرگرو
چې منگل نوميده كوښښ ئې وكړ چې دروازه خلاصه كړي اود پوستي دا خ
ته ورشي ليكن دملحدينو په مرمي ولگيد اوپه شهادت ورسيد ، څرنگ
چې دشهيد كورپه صوابي كي وو نو خپل كورته دوړلو لپاره مودهغه جنا
اوچته كره اوپه اوښ موبار كړه دلارى په اوږدوگى راباندي شپه راغله اوډير
سخته تياره وه زمونږ څخه لار وركه شوه يو زه ووم اويو داوښ مالك
راسره هيڅوك هم نه وو بجلي اودرنها وسايل هم نه وو نومونږ حيران او خ
كښيناسو مايوي تيزي ته تكيه ولگوله اوپريشاني راباندي راغله اوويده شو
په خوب كي همداشهيد راته رهنمائى كوي چې خفگان مه كوه اوښ ته حرك
وركړه هغه چې په كومه لار روان وو تاسي ورپسي ځي هغه به انشاءالل
تاسي راساً خپل منزل ته ورسوي اوزما بار به هم داوښ لپاسه نه كږيږي
سنك وائي چې زه فوري له خوبه رابيدار شوم گورم چې اوښ حركت ته تيا
دي ماخپل ملگري ته وويل چې اوښ ته حركت وركړه هغه وويل چې ډير
تياره ده ماورته وويل په خداى «ج» توكل دي انشاأالله څه تكليف به نه
پيداكيږي هغه اوښ لارى ته برابر شو اوحركت مو وركړ اوښ مخكى اومونږ
ورپسي ووهيڅ لارئي نه خطا كوله ډيرى لوړى اوژورى وى خوبيا هم لارئي

نه پریښودله اخر ډیر وسختتو ګړنګونو اوژورو کندوته ورسیدو اوښ هم وډرید یو خوا اویله خوائی وکتل په دی کی داوښ مخی ته غیبی رڼا شوه مونږ ویل چی څوك لاروی به راغلی وی اوښ ددی رڼا په کومك روان شو مونږ هم ورپسی تلو او شهید چی په اوښ بار وو هیڅ نه کږیده په دی توګه مونږ یو کلی ته ورسیدو اوسهار رالنډ شو په دی کی هغه رڼا چی داوښ مخی ته به روانه وه هم غائبه شوه نومونږ هم حیران شو چی دارڼا اخر له کومه درکه وه حال دا چی نه زمونږ څخه مخکی څوك ووانه ورروسته له مونږ څخه څوك موجود وو.

---

سنك اوس دصوابی په کمپ کی اوسیږی اوپه قوم خروتی دی دشهید په جنازی کی ماهم شرکت کړیدی چی موسکی معلومیده .

## په یومجاهد دروسی له خواد سپی ورښکارل اوسپی بیرته په روسی ور ګرځید ل

۱- مجاهد عبدالوکیل دخپل یو دوست په حواله وائی چی ماته می یوه دوست اوملګری قصه کوله چی زه دروسانوله خواپه جلال ا بادکي ونیول شوم اودثمرخیلوپه عسکری قرارګاه کی ئی بندی کړم هلته ئی ماباندی هرډول ظلمونه وکړل ډیروهل ، ټکول ، په برچو اوقنداغونو سوری کول دا هر څه ئی راباندی وکړل یوه ورځ یی راپسی تربیه شوی سپی راوست اوماپسی ئی راوښکاره چی وه ئی نیسه ماسپی ته وویل چی ای سپیه ته هم دخدای «ج» مخلوق ئی اوزه هم دخدای «ج» بنده یم دروسی خبره مه منه هغه زما اوستا درب شریك دښمن دی ، سپی چی کله زما غږ واورید سمدلاسه په روسی

ورو کرځېد اوډېر سخت ئې ودارړه اوژوبل ئې کړ مادهماغه روسی کلاشنکوف راواخیست اوبیرون راووتلم شاوخوا ډیرروسان ولاړوو په مائی هیڅ غرض ونکړ اوروغ رمټ له کلاشنکوف سره دمجاهدینو مرکز ته راغلم نه په لاری کی چا حصار کړم اونه چاراته څه تکلیف ورسولو .

۲- دهمدی واقعی په دوهم اړخ کی راځی چی کله زه ددی ظالمانو اوملحدانو له خوا ورهل شوم نو ډیر درد او تکلیف له وجهی ډیر زیات تږی شوم ماله دی ظالم څخه اوبه وغوښتلی روسی ولاړ واوماته ئې اوبه راوړی اوچونه ئې پکی ورګډه کړه ماته ئې اوبه په مخ کی کیښودلی اوراته ئې وویل چی اوس ئې وڅښه ماله مجبوریت څخه دا اوبه راواخیستلی اوبسم الله سره می وڅښلی وائی چی کله می دا اوبه وڅښلی ټول زخمونه می جوړ اودځان دردونه می ارام شول هرډول درد اوتکلیف می رفع شو له هغه وروسته می دبدن یوغړی هم دردنه دی کړی ، په داسی حال کی چی له چونی سره مخلوط اوبه دبدن تکلیف اودرد زیاتوی ، دستونی اومعدی تخریش پیدا کوی خو دا اوبه ماته الله تعالی په خپل فضل اوکرم سره شفا وګرځولی اوماته ئې ارام او راحت راوبښلو .

---

داقصه ماته عبدالوکیل دکڅ دکلی اوسیدونکی چی اوس په بده بیره کی اوسیږی بیان کړیده اوهغه ته درسمند وپه کمپ کی یو کس بیان کړیده .

## له نیستی څخه هستی

یونفر مهاجر چی په بدن معیوب اوډیر مسکین وو نه ئې مال درلوده اونه دولت باوتل ئې دغریبی ژوند تیرولو اودنورډیر قرضدار وو یوه ورځ ماورته

وویل چی ورارہ دی له ماسره جهادته ولیږه ځکه چی زما ورته ډیر ضرورت دی هغه دخپلو مشکلاتو باوجود زه نه شوای خفه کولی ورارہ ئی له ماسره جبهی ته ولیږه زه ډیر ورته پریشان ووم چی په کورکی به ئی څه حال وی خو خدای «ج» ته می سوال وکړ چی یا الله ته مهربان ئی خپله مهربانی ورباندی وکړی ، نو کله چی ددی مجاهد نوبت پوره کیده په جبهی کی دحلالی طریقی ښی ډیری روپی لاسته ورغلی چی په کور کی ئی هم کله دومره روپی نه وی گټلی ، اوکله چی کورته راغلو نومعیوب تره ئی هم دومره روپی گټلی وی چی هیڅ ساری ئی نه لیدل کیده .

---

دغه نفر نورگل نومیږی اوس هر وخت له ماسره خپل ورارہ جهاد ته لیږی ، دډیری شتمنی خاوند شویدی اوداهرڅه دجهاد له برکت څخه انگیری ( مؤلف )

## ددښمن دخطر ناکو مرمیو شنډیدل

په ۱۳۶۳ کال چی دروسانو اوداخلی کمونستانو یوه لویه قواء دپکتیا ولایت دځاځیو سیمی ته راغلی وه او غوښتل ئی چی دمجاهدینو سرحدی غنډونه اشغال اوله منځه یوسی ځوروړځی مسلسل دمجاهدینو مرکزونه بمبارد اوتوپونو دلویو مرمیمو داورلاندی وو دالفتح په غنډ کی دمعمول مطابق دمجاهدینو ستر مشر محترم حکمتیارصاحب موجود اودجنگ قومانده ئی په غاړه وه یوه ورځ ورته څو نفره قوماندانان راغلل اوتاکیداً ئی ورته ویل چی مونږ ته مؤثق راپور راغلی چی ددی غند اوخاصتاً ستاسی دلمنځه وړلو ساره دری فیره لوئی مرمی چی دوزن له مخی یوه مرمی په

يويو موټر کی انتقال شوی روسانو له ځان سره راوړی اودتخریب ساحه دهری مرمی پنځه سوه متره ده نو بهتره به داوی چی تاسی مرکزی دفترته تشریف یوسی ځکه هلته هم ډیر کارونه تاسی ته معطل دی نوده وویل زه به انشاألله دمجاهدینو له فتحی پوری همدلته موجود یم بی عاجله هیڅ نشی کیدای ، نو هغه وو چی یوه ورځ له همدی مرمیو څخه ئی یوه دغند په پاسنی حصه دسپین غر په لمنه کی ولگیده دبارو تو بوی دغند ساحه ونیوله ، بله مرمی دسرگل په حصه اودریمه خودسره معلومه نه شوه لیکن دځینو کسانو په حواله چی په نری ( دځاځیو حدود ) کی ولگیده لیکن دخدای «ج» په فضل اوکرم دغو خطرناکو مرمیو هیڅ تاوان اوخساره ونکړای شوه اونه ئی چاته کوم زیان اوتاوان واړولو په دی توگه قوأله ماتی اوشکست سره مخ اومجاهدین دپوره غنائیمو خاوندان او دډیرو دښمنانو دلمنځه وړلو باعث اوکامیابی ئی په برخه شوه .

---

دواقعی دوقوع په وخت زه په التفح غند کی موجود اومدیر سیدالرحمن ددی غند قوماندان ئی ماته پوره وضاحت کړیدی . (مؤلف )

## په روسانو زلی اوطوفان نازلیدل

په ١٣٦٤ کال چی کله دروسانو اوداخلی کمونستانو قوأله ننگرهار او کابل څخه راغلی وه اودهلیکوپټروپه ذریعه ئی عسکرپیاده کړی وو نو څرنگه چی دادلوی اختر شپی ورځی وی اودابی شمیره عسکر دلوگرولایت دازری په ولسوالی کی پیاده شوی وو مجاهدین داختردشپوورځوله کبله

خپلوکوروته تللی وونوروسانوټولی حاکمی نقطی اولاړی اشغال کړی وی کله چې مجاهدین خبرشول نوله پیښوراونوروکمپونوڅخه ډلی ډلی دهغوی مقابلی ته ورتلل لکین دلکړی اوخرچتل په حدودوکی ددښمن دکمین له کبله حصارشول چی هلته نه ډوډی پیداکیدله اونه دخوراک کوم شیزبه دوهمه ورځ دالله تعالی په حکم سخته ږلی اوطوفان راغی چی نه طیاروبمباردکولی شواونه روسانوڅه فعالیت کولای شوای دروسانوخیمی اوقرارګاوی ئی ړنګی بنګی کړی اوبیرته وتښتیدل کله چی مجاهدین دهغوی مرچلوته ورغلل نوهرڅه ورڅخه پاتی وو،حتی دروسی عسکروخولی،دریشی اومهمات ورڅخه پاتی اوهرڅای اومورچی کی به ئی وینی په څمکه توی شوی وی چی په دی توګه دباران،ږلی اوطوفان په ذریعه الله تعالی دوی نابوداوتیښتی ته مجبورکړل.

---

دمولف لیدلی حال.

## دهجرت په سفرکی ووږی اوهلواموندل

مولوی صاحب الحاج کټوری دخپل هجرت قصه داسی کوی چی دملحدینودسخت بمباردله کبله په۱۳۵۹کال دی ته مجبورشوم چی وروړګاونړی هیوادته هجرت وکړم دخپل عیال سره راروان شوم چی نه راسره دحمل ونقل څه وسیله اونه مودخوراک څه شی له ځان سره راوړای شوای یوه شپه اوورځ مومنزل وکړاوله مابنام پوری راته دخوراک هیڅ شی پیدانشوکله چی دپاکستان سرحدی سیمی(تره منګل)ته ورنږدی شونوزمایوه کوچنی

لورماته په ژړاشوه چې باباجانه زه وږی یم،نوماورته تسل ورکړچې دادی
رالنډیږشوی یوپه بازارکی به درته هرڅه واخلم، هغی ماشومی ژړل اونه غلی
کیده زه کښیناستم اودا ماشومه ورووروروانه وه چې څوقدمونه ئی واخیستل
نوماته ئی اوازوکړچې باباجانه ډوډی می مونده کړه کله چې زه ورغلم نوتوده
اوګرمه ډوډی وه په منځ کی ئی حلواایښی وه زما په خولی چې روژه وه نوما
اوزما ټول عیال وخوړه سبه پری ماړه شو،حال داچې نه څوك زمونږ مخی ته
راغلی وواونه راڅخه څوك په لاری مخکی شوی وو.

(والله اعلم )

## دکیږدی لپاسه پراشوتی بم غورزیدل

یو کوچی دخپلو سترګولیدلی قصه داسی بیانوی چې په یوه غره کی
می کیږدی درولی وه اوماخپله رمه دڅرولو لپاره بوتله چې دی وخت کی
ددښمن دوه جیټ الوتکی راغلی اوزما دکیږ دی په شاوخوا ئی سخت
بمباروکړزه په منډه منډه دخپل کور اوعیال دحال احوال لپاره ورغلم څه ګورم
چې کیږدی می په خاورو اودوړوکی پټه ده اویو پراشوتی بم دکیږدی لپاسه
روغ رمټ پروت دی ، دکور ټول غړی می دخدای «ج» په فضل اوکرم سالم وو
هیڅ‌ماته هم ضرر نه وورسیدلی ماله کیږدی څخه خنثی شوی بم یوی خواته
وغورځولو اوپه یو لری ځای کی می ګذار کړو په داسی حال کی چې نه ئی
زما کیږدی څیر لی وه اونه دهغی تنابونه، چې دواقعی په لیدلو می دالله
«ج» شکر ونه اوتوبی وایستلی اوخلکو به په دی حال تعجب کولو اوټول
ورته حیران وو .

( والله اعلم )

## له تیزې څخه دبم کاراخیستل

دننگرهار دسره رود په منطقه کی یو بوډا مجاهد دخپل جهاد قصه داسی کوی چی داسلامی انقلاب په پیل کی دجهاد لپاره دسره رود سیمی ته ولاړم هلته له مجاهدینو سره ملگری شوم یوه شپه هغوی غوښتل یوی پوستی باندی عملیات وکړی ماورته وویل چی زه هم درسره ځم ، هغوی وویل ته بوډائی همدلته په مرکز کی پاتی شه خو ماورسره ونه منله له ځان سره ئی روان کړم چی کله پوستی ته ورسیدلو نو ما ورته وویل تاسی دلته کښینی زه به دپوستی مکمل معلومات واخلم اوپه هغی به دتعرض لار اوگودر معلوم کړم هغوی راسره ومنله سلاح می نه درلوده یوه تیزه می په لاس کی ونیوله پوستی ته ورغلم هلته یو عسکر په پهری ولاړ وو په هغه می غږ وکړ چی تسلیم شه اوکنه نو وه می ویشتلی هغه دتسلیمی اوازو کړ وه ئی ویل پام گوره چی بم گذارنه کړی! هغه لاسونه پورته کړل سلاح می ورڅخه واخیسته خپلو مجاهدینو ته می بوتلوهغوی ورته وویل چی موږ پوستی ته بوځه پوستی ته ورغلو ټوله بیده وو اوگیر موکړل ټوله پوسته موتسلیم کړه ، اوملگرو می تعجب کولو .

---

دراقعی بیان اوستروکولیدلی حال ، حاجی محمداجان کړیدی چی په قوم رضاخیل دی .

***

## دموچی په ذریعه دیوروسی هلاکیدل

کله چی یو کلی ته دبیگناه مسلمانانو دزورلو په غرض دتلاشی په نوم روسان ورغلی وو نوهلته چی یوروسی یو کورته داخل شو یوی پاکی بی بی ته دضررورسولو اوهغی ته دسپك نظر کولو په نیت ورلنډ شو غوښتل ئی چی بی عزتی ورواړوی پدی کی دی زنانه سوال وکړ یا الله«ج» غیر له تاپله هیله اواثره نه لرم ددی ظالم اومفسد له شر اوفساد څخه نجات راکړی پدی کی یوه غټه سره موچی راغله اوروسی ته ئی په ورمیږ کی نیش ورکړ ټول بدن ئی وپړسید په څمکه راګلارشو اومردار شو چی په دی قسم ددی شریر روسی له شر څخه متعال خدای «ج» دغه پاك لمنی بی بی خلاصه کړه اوالله «ج» تعالی په خپل فضل اوکرم روسی دیوی موچی په ذریعه هلاك کړ .

(والله اعلم)

---

کله چی داقصه مااوریدله دکتاب دلیکلو نیت می نه درلوده څکه ئی محل اوتاریخ نشته .(مؤلف)

## ماشوم اوددغه قربانی

یووخت دجلال آباد په ښارکی دکمونستانومیتینگ وو ډیره گنه گونه وه یو کوچنی هلك چی په ټوکری کی ئی سگرت اچولی وو دخلکو منځ کی گرځیده دټوکری په منځ کی دسگروټو دلاندی ئی یو لاسی بم منډلی وو وار په وار دستیج خواته ورلنډ یده کله چی هلته ورسیده نو دستیج تر څنگ اکثره کمونستان اوروسان ناست وو نوهغه ټوکری ئی هلته کیښوده هلك

یوخوا اویله خوا دخلکو په منځ کی ګرځیده ترڅو یم انفلاق وکړ اومنفجر شو ډیر روسان اوداخلی کمونستان ئی جهنم ته ولیږل هلك پسی ډیر تلاش وه شو خودهر چاله نظره غائب اوهیچا بیا ونه لیده .

(والله اعلم )

---

دغه واقعه داسی چاپیانوله چی پخپله شاهد حال وو لیکن مائیی دکتاب دلیکلو دارادی دنه درلودلو له کبله په هغه وخت کی پوره شهرت ته توجه ونکړه .( مؤلف)

## اوه نفره په اسونو سواره دمجاهدینوامدادکی

دیر مجاهد اوداحد قرارګاه نظامی مسئول وائی چی ماته دمحمدآغی ولسوالی یو قوماندان معلم ذکرالله کوچی وویل چی مونږه یوه شپه دلوګر په ولایت کی عملیات درلودل زه دخپلو مجاهدینو سره روان شوم کله چی دوزیر کاریز ته ورسیدو هلته راسره اوه نفره ملګری شو چی په اسونو سواره وو په داسی حال کی چی په اشنائی کی نااشنا معلومیدل کله چی مونږ دجنګ میدان ته ورسیدو نو جنګ شروع شو دغو اوه«۷» نفروښه مست جنګ وکړ مونږیه ورته کتل چی له دښمن پسی اسونه یوخوا اوبله خوا ګرځوی په دی ترتیب مونږ دهغوی په امداد اوکومك اودالله تعالی په رضا ښه ډیر کمونستان هلاك کړل کله چی کامیاب راستانه شو نو هغوی په اسونو سواره کسان راڅخه غائب اوورك شو نو کله چی مونږ خپلو مرکزونو ته راورسید و اوعقل موسرته راغی هر یو مویلا بیل وپیژانده چابه ویل داخوفلانی وو اوچابه وویل چی هغه خو فلانی کس وو حتی چی مونږد هغوی کلی ، کور ،

کرغیرنی فلسفی څخه دټول جهان کرکه او نفرت پیدا کیدل دهمدی مقدس اسلامی جهاد برکت اودافغانی مجاهدینو اوشهیدانو کرامت اوخارق العاده پیښنو څخه نور څه کیدای شی که څه هم د روسانو په شکست اودکمونیزم دزوال لپاره هرمجاهد افغان دخپل توان اوقدرت په اندازه قربانی ورکړه په دی لارکی له یونیم میلون څخه زیات افغانان شهیدان ، له دومیلونو څخه زیات معیوب ، له پنځو میلونو څخه زیات مهاجر اوبی کوره شول ، دچاکورونه ړنګ شول دچاباغونه اوفصلونه پوفناشول اودچاهم څمکی شاړی او بنجر شوی بلاخره داسی مجاهده کورنی به نه وی پاتی چی دروان مقدس اسلامی جهاد په دوران کی ورته څه تکلیف اوصدمه نه وی رسیدلی اودا هرڅه قربانی افغانانو اوپه خدای «ج» مینو اوتوریالیو مجاهدینو ددی لپاره ورکړی چی دائی دخدای «ج» حکم ګڼلو ، په دی کی ئی دخدای «ج» رضا لټوله ، اودائی دخپلی تقوی معیار ګڼلو نوځکه الله تعالی خپل کومك ددی متقیانو په حال شامل کړ ، لکه چی فرمائی :

وقتلوالمشرکین کافةً کمایقتلونکم کافةً

واعلموا ان الله مع المتقین

یعنی جنګ وکړی له ټولو مشرکانو سره لکه څنګه چی هغوی ټول له تاسی سره جنګ کوی په تحقیق الله «ج» له متقیانو سره دی .

په دی کی شك نشته چی افغانی مجاهدینو په صفانیت ، پوره تقوی اوټینګ ایمان سره په تش لاس اوخپلوابتدائی وسلو ددښمن په مقابل کی دفولادی صف په څیر ودریدل نوځکه الله تعالی ورسره خپل کومك ملګری اودروسانواوکمونیزم غروراوامپراطوری ئی ددی تش لاسی قوم په ذریعه دتل

پلار اووروڼه وپيژاندل چې دوی ټول په جنګونو اومختلفو عملياتو کی ددښمن څخوا په شهادت رسيدلی وو ، ددی واقعی په ليدو مونږ دي نتيجی ته ورسيدو چې مونږ په جهاد کی يوازی نه يو بلکه رب العزت راسره په مختلفو طريقو مرسته اوکومك کوی .

---

دواقعی حا کی محمد رحيم چې داحد قرارګاه نظامی مسئول دی اومعلم ذکرالله«کوچی» دمحمداغی دولسوالی يو قوماندان وو چی اوس په شهادت رسيدلی دی .

## په قبر کی دشهيد څهره

دکابل ولايت دچکړی له منطقی څخه قوماندان حزب الله قصم کوی چی ددښمن په پوستی موعمليات درلودل يو نفر مجاهد دچکړی په جريان کی راته شهيد شو اوهغه مو راواخيست دخپل مرکز تر څنګ مودښخولو لپاره انتقال کړ اوبيا مو دخپل مرکز خواته ښخ کړ يوه مياشت وروسته ئی کورنی چی په پيښورکی وه له شهادت څخه خبر شوی وو نودهغه دحال احوال دمعلومولو لپاره ئی پلار اوڅوکسه نور خپلوان زمونږ مرکز ته راغلل مونږ ورته حقيقت روښانه کړ اوعذر ، معذرت مو ورته وکړ اود شهيد قبر ته مو وروستل هغوی ورته دوعا وکړه له ماسره يوه کمره وه ماته ئی وويل چی ددی شهيد دقبرڅخه يو عکس واخله تر څوئی ددی شهيد مور اودکورنوروغړوته دتسل لپاره قبر ښکاره ښی نوماهمداسی وکړل دپښو لورته ئی ودريدم اومافلم ورڅخه ډك کړ نوکله می چې فلم صفاکولو څه ګورم چی دشهيد عکس اوخپله څهره پکی واضيح معلوميږی دشهيد مخ ، سترګی ، پوزه

اوتړول اندامونه پکی معلومیدل په داسی حال کی چی دفلم داخیستلو په وخت کی په شهید ډیری ډیری خاوری پرتی وی .

---

دغه عکس ډیروکسانو لیدلی دی په ۸-۷-۱۳٦۵ نیټه ئی زمونږ په قرار گاه ( داخد قرار گاه) کی دډیرو کسانو اومجاهدینو په حضور ښکاره کړی وو چی سپین ، حاجی دیدار خالون اونور مجاهدین پری شهادت اوگواهی ورکوی .
باید وویل شی چی مامور حزب الله دحزب اسلامی یوتکړه قوماندان اواوس په نصرت مینی فامیلو کی اوسیږی .

## غوائی اودخپلو شهیدانو انتقام

محمد یعقوب په خپلی یوی رادیوئی تبصری کی وائی چی غزنی ولایت ته دروسانو قوأ تللی وه هلته به چی روسان هرکلی اوکورته ولاړل خلك به ئی راجمعه کړل اویو ځای به ئی شهیدان کړل پدی توگه یوبل کورته ولاړل دهغه کورتړول غړی ئی راجمعه کړل او په یوځای ئی دغه بیگناه کسان په شهادت ورسول په دی کورکی دوه غوایان ولاړ وو هغوی چی داصحنه ولیده هغه پړی چی پری تړل شوي وو وه ئی شلول اوله یو روسی پسی ئی منډه کړه هغه روسی چی دغه کسان ئی شهیدان کړی وو هغه مخکی اوغوایی به وریسی منډی وهلی تر هغوی ئی ځغلولو تر څوروسی عسکر ولویدنوبیا غوائی په خپلو ښکروترهغو پوری واهه تر څو بی حرکته اومردارشو نوپه دی توگه غوائی دخپلو شهیدانو انتقام واخیست نو کله چی ددی روسی طبی معاینه وه شوه داثابته شوه چی په منډی وهلو کی ئی ساه ورکړی وه .

## شهید ژوندی لیدل

دپروان ولایت دبگرام اوسیدونکی چی مانوگل نومیږی او اوس دمنډا په کمپ کی اوسیږی دارنګه قصه کوی چی وروډمی په بګرام کی له مجاهدینو سره جهاد کولو اوهلته په شهادت ورسید اوبنځ کړل شو څه کسان ماته کورته راغلل اوزه ئی په شهادت خبر کړم چی ورور دی شهید شوی دی نوما ئی فاتحه واخیسته اوخیرات می ورپسی وکړ .

څه موده چی تیره شوه نوزمونږ له منطقی څخه مجاهدین راغلل چی ستاورور خومونږ ژوندی ولید په دی توګه څورواری څوکسانو ماته دهغه دژوندی لیدلو وویل دی خبروته زما تشویش شو دموضوع دمعلومات لپاره بګرام ته روان شوم هلته ورسیدم په لاری روان ووم دهغوی سرګروپ می لیدلو یو نفر مخی ته راغی ماته ئی وویل ستا وروریرون په همدی لارله مجاهدینو سره روان ور ، بل نفر هم مخی ته راغی هغه هم عین خبره وکړه زه مخکی ولاړم هلته په یو کلی کی راباندی شپه راغله دشپی ویده شوم خوب کی می ورور راغی ماته ئی وویل زه شهید یم ماپسی ځان مه سرګردانه کوه داچی کله ناکله می خلك وینی ګوری دا دشهیدانوخپل کاردی ته خپل کورته ولاړ شه نوپدی توګه له خوبه بیدارشوم زړه می ډیر ډاډه ور هلته چی زما څه خپل خپلوان ور ماته دعذر اوتسل لپاره راغلل ماته ئی تسکین راکړ ورته وه ئی ویل چی شهیدان ټول ژوندی دی مونږ دهغوی په ژوند نه پوهیږو په دی توګه زه واپس راغلم .

---

مانوګل په قوم ناصر دی چی اوس دمندا په کمپ کی اوسیږی.

## په خوب کې دخپل شهادت خبر

یوطالب العلم چې حضرت میر نومیږی دخپل یوهم صنفی په حواله وائی چې ماته می دی هم صنفی وویل مونږ دجلال آباد عملیاتو ته ولاړو هلته په یو مرکز کې دیره شو زمونږ یو همسنگر مجاهد خوب ولید چې یو سپین ږیری سړی راشی یوه منه ورسره وی هغه ماته رابوی کړی بیائی نیمه کړی نیمه زه وخورم اونیمه هغه وخوری ، نوددی خوب تعبیر به څه وی ؟ هرڅا اومجاهد ورته بیل بیل تعبیر ورکولو لیکن هغه وویل چې داسی نه ده ماته داسی معلومیږی چې زما عاجل رارسیدلی دی پدی لنډ اونژدی وخت کی به زه په شهادت رسیږم ، مونږ هر یوه واړ اوتسل ورکړ چې داسی به نه وی . په هر ترتیب سبا ورځ عملیاتو ته ولاړو جنگ شروع شو ددښمن یوه مرمی راغله زمونږ هماغه ملگری چې بیگاه ئی خوب لیدلی وو په شهادت ورسید اوپه دی توگه دهغه دخوب تعبیر صحیح وخوت .

---

طالب العلم حضرت میر دعبدالله بن عباس دمدرسی شاگرد چې اوس دجهاد حربی پوهنتون محصل دی .

## شهید کلاشنکوف کلک نیول

مولوی صاحب معین الدین دخوکسانو په حواله وائی چې ماته یو نفر قصه کوله چې په جلال اباد کی یو نفر مجاهد راته شهید شو دا چې دشهید کور دشین کاری په کمپ کی وو مونږ وغوښتل چې خپل کورته ئی یو سو لیکن له هغه سره یو میل کلاشنکوف وو کلك یې نیولی وو نه ئی خوشی

کاوه مونږ چې هر څوزورونه پرې ووهل ترې وامونه خیستلې شو بلاخره فیصله وشوه چې له سلاح سره ئې نقل کړو په طورخم ، لواړگی اوځای ځای کې ورپورې پولیسو زور ونه وکړل هغوی هم دتللو اجازه وکړه تر څو داټك تلاشی ته ورسیدو نوهلته مودتلاشی مشر ته حقیقت روښانه کړ هغه ونه منله او په ډیر غرور سره ئې وویل چې کلاشنکوف به څنګه نه خوشې کوی ؟ زه به ئې په هره طریقه ورڅخه اخلم واتی چې کله پولیس مشر پخپله ورپسی راغی اوکلاشنکوف ئې ورڅخه کش کړه ډیر زورونه ئې وکړل لاس ئې خلاص شو په ځمکه راګذارشو نژدی وو چې لاس ئې مات شی په لاس کی ئې درد شو ، نو هغه هم اجازه وکړه چې ولاړشی ،په پای کی کورته ورسیدو دشهید پلارته موحقیقت تیر کړ هغه خپل شهید ځوی پسی راغی ورته ئې وویل چې بچیه شهادت دی مبارك شه خوتاسره چې کوم امانت دی په هغه کی دکونډو رنډو اویتیمانو حق دی نوته داکلاشنکوف ماته راکړه چې زه ئې حقیقی وارثانو باندی وسپارم ددی خبری کولو سره شهید کلاشنکوف پرېښوده اوپلارئې واخیست .

---

مولوی صاحب معین الدین جید عالم دین اودیر اوچت مؤعظ دي اودحرکت انقلاب اسلامی دتنظیم غړی اودسدی د دیپو مسئول دی .

که شهید ته هرڅاوکړ سپــك نــظر
هغه ڇاته به ورپیښ شی لوی خطر
دوی جارکړی داسلام په نوم سرونه
خلاص ئې شراوله فتنی نه کړویشر

***

## دشهید په قبر کی گلاب زرغونیدل

مولوی صاحب معین وائی چی ماته یو نفر حکایت کولو چی د پکتیا ولایت په یوی سیمی کی یونفر مجاهد شهید شوی وو چی په هغه وخت کی نی دوړلو امکان نه وو نودری میاشتی وروسته ددی شهید پلار اونور وارثان وریسی ورغلل غوښتل نی چی قبر وسپړی اوخپل وطن ته نی یوسی دقبر په سپړلوئی پیل وکړ کله چی قبر لوڅ شو نو شهید صحیح سلامت پروت وو دپښو لورته ئی دگل یو بوټی شین (زرغون ) شوی وو اوشاخونه او غندلونه ئی تر پوزی پوری رسیدلی وو هلته ئی بیا دوه گلان نیولی وو یو گل دشهید یوی شپږمی او بل گل نی بلی سپږمی ته ورغلی وو اوداسی بوی ئی کولو چی قبر اودقبر شاوخوا ټوله ساحه ئی معطر کړی وه نوپلارئی وویل زوی جانه همدغه نعمت دی بس دی زما خودانه لوریږی چی له دی گلانو اوخوشبوئی څخه دی یوسم بلکه همدغه نعمت او راحت دی دربانډی پیرزو وی ، بیرته ئی خاوری پری واړولی اودوی ورڅخه واپس راغلل.

## په خوب کی دشهید مرتبه

مولوی صاحب معین الدین خپل یولیدلی خوب دارنگه بیانوی چی یوه شپه می خوب ولید ، په لاری روان ووم یوه لویه هدیره می مخی ته راغله څه گورم چی په څنی قبرونو تازه،ښه اورنگین گلان ولاړ اوزرغون دی اوځنی قبرونه خړپړاوبی گلانو دی هلته یو ډیر بوډا منجاور ناست وی زه ورڅخه پوښتنه وکړم چی ملنگ بابا داڅه خبره ده چی څُنی قبرونه ډیر تازه اوښکلی

ګلان لری اونور بیا دارنګه نه دی په حقیقت می لږ پوه کړه ، هغه راته ووائی بچیه خواته می راشه اودلته څنګ ته می کښینه نوزه همداسی وکړم خواته ئی ورشم بیا راته ووایې په دا کومو قبرونو چی ګلان ګوری داټول فی سبیل الله شهیدان دی اوداکوم قبرونه چی په هغو ګلا ن نه دی زرغون داهغه کسان دی چی په خپل کورکی په خپل مرګ مړه شویدی .

بیله شکه دشهید شته کـــرامت

پاك الله ئی په قرآن کوی صـفت

ډیر صفات ئی کتابوکی مالیدلی

له الله«ج» نه غواړم څکه شهادت

* * *

## شهید په پهره لیدل

یو نفر چی پاچانومیزی وائی چی ماته چا قصه کوله چی دکونړ په ولایت کی دیوی کونړی زوی په شهادت ورسید اوهملته په یوی هدیری کی ښخ کړل شو لیکن مورئی له شهادت څخه نه وه خبره له دی کلی څخه څونفره جبهی ته تلل مورئی دوه چرګان ورکړل چی زما څوی ته ئی ورکړه چی له نورو مجاهدینو سره ئی وخوری نوکله چی دا مجاهدین یوی هدیری ته ورسیدل په کومې کی چی دا شهید ښخ شوی وو وائی چی داشهید په همدی هدیری کی ولاړ وو ، کمربند ترملا اوسلاح ئی په اوږه ایښی وه اودیو پهره دار په قسم ولاړوو ، نوموږ ورته وویل چی موردی دا چرګان راکړی دی هغه وویل زه دلته پهره یم دا زموږ قوماندان ته ورکړی ، وائی چی کله موږ قوماندان ته ورغلو هغه ته موحقیقت تیر کړ هغه وویل چی شهیدان خوټول ژوندی دی

مونږ ئی په ژوند نه پوهیږو حتی رزق خوری . واثی مونږ دوباره هدیری ته ولاړو هلته بیا مونږ شهید ونه لیدلو اوقبر ئی صحیح سلامت وو نو مونږ له قوماندان سره ددی شهید مورته ورغلو هغه دځوی په شهادت خبره کړه قصه موورته وکړه هغه ویره خوښحاله شوه اوشکرونه ئی وایستل .

---

پاچادلوگر ولایت دازری ولسوالی دبېرودکلی اوسیدونکی دی .

## په خوب کی دشهید رهنمائی

معلم رید یکل خپل یواوریدلی حکایت دارنگه بیانوی چی دمیدان په ولایت کی واده وو دیو سړی زنانه اویوه ماشومه لور دواده کورته تللی وو څرنگه چی دناوی کورپه بل کلی کی وو نودهلك له کور څخه بس ونیول شو اوتقریباً اویا (۷۰) کسان سړی ، زنانه اوماشومان پکی برابرشول نوهغه زنانه اوماشومه چی دواده کورته میلمه دڅه خپلولی له کبله ورغلی وه په موټر کی ورته ځای پیدانه شو اوپاته شوه موټر حرکت وکړ ، دلاری په اوږدوکی دکابل دکمونستی حکومت له لوری پری سکلو میزایل راغی اوموټر پری ولگید په موټر کی سواره ټول کسان شهیدان اوموټر په مکمله توگه اورواخیست اوتباه شو . دموټر سورلی یو نفر هم نه پیژندل کیده نوکله چی دکلی خلك خبر شول هر چا ځانونه رسول اودواقعی ځای ته ورتلل نوهغه سړی چی دهغه زنانه اوماشومه لور واده ته تللی وه هغه هم دا گمان کولو چی زما زنانه به هم په همدی موټر کی تللی وی نو هغه هم هلته ولاړ هر چاخپل خپل شهیدان لټول چا به ئی کوم اندام پیدا کړ اوچا هم بل څه دی سړی هیڅ هم ونه موندل

اودخپل اټکل له مخې ئې یونامعلوم شهید راواخیست اودخپل کلی هدیره کی ئې ښخ کړ .

دا سړی شپې خوب وینی اوهمدغه ښخ شوی شهید ورته وائی چې زه ستا کور ودانی ته یم زه فلانی دفلانی زوی یم ستازنانه اوماشومه لور دواړه ژوندی دی انشاء الله بیگاته به دواړه راشی داسړی وائی چې بیگا ته زما زنانه اوماشومه لور دواړه کورته راغلل وائی چې ماورڅخه پوښتنه وکړه چې داڅه خبره ده ماخوگمان کولو چې ته به هم له دی ماشومی سره په بس کی شهیده شوی ئې هغې راته وویل چې کله بس روانیده ماته یکی ځای پاتی نشو نوزه دواده په ځای کی حصاره شوم نو کله چې دواقعی خبر راغی نودغم شریکولولپاره زه هملته پاته شوم ماورسره ویر وگاللو اوس چې فارغه شوم دادی راغلم .

---

معلم ریدیگل اوس دبده بیری په پرایمری سکول کی سرمعلم دی .

## یغنی اوواوری کی دیوی ماشومی جیلی شپه تیرول

دزرگانی له کلی څخه دوه وروڼه زرجان اوسردارخان په یوه خوله خپله لیدلی واقعه داسی بیانوی چې په ۱۳٦۰/۱۰/۲ نیټه دکابل ولایت دخوردکابل دخروټو کلی څخه یوه کورنی دملحد رژیم دبمبارد له کبله په هجرت کولو مجبوره شوه نو کله چې داوچکی په نوم یو چول بیابان ته ورسیدل نو سخته گردله راغله واوري اوگله گرکي په اوریدلو شو اوهواډیره سړه شوه وائی چې مونږ ډیر ستړی ستومانه شو خپل ځانونه موهم نه شوول

دمجبوریت له مخې یوه ماشو مه څلورکلنه جیلی راځخه پاته شوه هلته صرف غرونه اوځنګلونه وویل هیڅوك هم نه وو نودکورنی نورغړی دشپی ډیر ناوخته یوکلی ته چی زرګانه نومیږی ورسیدل کله چی سبا سهار شونو دکلی خلك ئی خبر کړل چی زمونږ څخه یوه ماشومه پاتی شویده نوځونفره اویو دکور سړی ورسره روان شو کله چی هغه ځای ته چی ماشومه پاته وه وررو سیدلو هغه نه وه مونږ دا فکر کولو چی هغه به ځناورو خوړلی وی یو خوا اوبله خواورپسی ډیروګرځیدو اخر یو ډیرلری ځای کی مو یو څه له سترګوشو کله چی ورغلو نو همدا جیلی روغه رمټه دیوی ځنګلی ونی ( جلغوزی ) لاندی ناسته وه اوډیره خوشحاله اوتازه وه چی مونږ ئی ولیدو نوپه خندا شوه په غیږ کی موونیوله لیکن دجدائی اوتنهائی هیڅ اثارپکی نه معلومیدل مونږ ورڅخه پوښتنه وکړه چی شپه دربااندی څنګه تیره شوه هغی دخپلی ماشوموالی په ژبه وویل کله چی دلته په دشتی اوځنګل کی پاتی شوم ماتاسی پسی ډیری ناری وکړی تاسی به ماته غږ نه کولو له هغی وروسته یو زوړ اوسپین ږیری سړی راغی زه ئی په غیږ کی ونیولم بیا ئی ډوډې راکړه هغه می وخوړه، بیائی په غیږ کی ویده کړم ، سهار چی راپاڅیدلم بیائی ډوډی راکړه دادی تر اوسه راسره ناست وو کله چی تاسی راښکاره شوی هغه راڅخه روان شو په دی توګه راباندی ډیر ښه وخت تیر شو

---

دغه ماشومه جیلی پلوشه نومیږی اواس هم ژوندی ده ، دپیو په کمپ کی اوسیږی .

تـه قـادرئی الهی لوړدی قـدرت دی
چی هرڅه کوی هغی کی دی حکمت دی
نشست لــه هست ځنې پیدا او هست بیا نشت کړی
هريو کاردستالایق دډیــر صــفت دی

* * *

لپاره نابوده کړه.

یوه خبره چې دلته ئې دذکروړبولم هغه داده چې دغه غیوراو توریالی قوم به خاص ډول افغان مجاهدین باید هیڅکله خپل زور اوغلبې ته غره نه شي ځکه چې روسانوته شکست ورکول ، هغوی زوال سره مخ کول ،ټول مسلمانان اونړی دهغوی له شراوفتنی څخه ژغورل ددې کم زورې قوم افغان مجاهدینو په ذریعه دالله تعالی د نصرت اوکومك په واسطه سرته رسیدلی . لکه پدې ارتباط الله «ج» دانفال دسورې په یوه برخه کې فرمائي :

أني ممدكم باالف من الملئكة مردفين

یعنی ستاسي دا مداد لپاره زرملائکې ټولي ټولي راوستل شوي چې البته دا دبدر دغزا واقعه ده تر څو دمجاهدینو دکومك په خاطر زرملائکې دمشرکینو دټکولو اونابودولو په غرض دالله «ج» له خوا اوهدایت رالیږل شوي وې اونتیجه ئې دمجاهدینو فتحه اوغلبه شره دهمدې واقعې په اړونده بل حای فرمایې :

ومارميت اذرميت ولكن الله رمى

ترجمه : اونه دې ویشتلی تا (ای محمده ) په وخت دویشتلو کې لیکن ویشتلی دی الله «ج» تعالی په وخت دویشتلو کې .

لکه څنګه چې دیرځلی دافغانستان په روان مقدس اسلامي جهاد کې لیدل شویدي چې دمجاهدینو ډیر وړوکی ګروپ ددښمن په ډیر لوی فوځ اواسلحو سنبالی قواً فتحه حاصله کړیده اوهغوی ئې دخپلو مدرنو اسلحوسره زغلولی ، دهغوی ټانکونه اوموټر ئې تخریب کړي اوپه غنیمت نیولی دی حال دا چې هغه به داسې مجاهدین وو چې نه ئې نظامي اوعسکری روزنه

## دشهیدانو هدیره

مولوی صاحب دستگیر وائی چې زه کله دافغانستان په داخل کې دکومی هدیری ترڅنګ تیریږم نوماته یوډول خاص معطر اوډیر ښه زړه راښکونکی بوی حس کیږی چې دااصلاً دشهیدانو موجودیت اودهغوی کرامت دی .

مولوی صاحب وائی چې زه یوه شپه دلوګر په یوی سیمی کې له یوځای څخه بل ځای ته روان ووم لاره راڅخه ورکه شوه خوله یو طرف څخه ماته ډیر ښه بوی حس شو زه هماغه طرف روان شوم څومره به چې وړاندې تلم نودغه معطر بوی به زیاتیده بلاخره یوی هدیری ته ورسیدم چې دا اصلاً دشهیدانو هدیره وه ، له دی وروسته چې زه یوه شیبه په هدیرو کې ودریدم نولاره مې سمه کړه اوولاړم .

---

داواقعه دمولوی دستګیر دمؤعظو له کست څخه اخیستل شویده .

## دجهاد له برکته دڅناورو امتیاز

مولوی صاحب دستګیر په یوی بلی خپلی لیدلی واقعی کې وائی چې حتی څناورهم دجهاد له برکت څخه خالی ندی ، دی وائی چې یوه ورځ زه له نورو مجاهدینو سره یوځای جهاد ته تلم اود سرخاب له دری څخه دلوګر یوی سیمی ته روان ووم هلته به هره ورځ ددښمن دثقیله اسلحو انداختونه اوفیرونه کیدل یو آس ددښمن په مرمی لګیدلی او مړ شوی وو زه ښه ورنږدی شوم یو قسم خوږ اوپاکیزه بوی ورڅخه پورته کیده اومخ ئی دقبلی په لور اړولی وو

ډیری ورځې پری وتلی وی لیکن اندامونو ئی کوم تغیر نه وو کړی چی ددی حالت په لیدلو سره ماته داصحابو کهفو دسپی واقعه راپه یاد شوه .

---

داواقعه هم له کست ځخه اخیستل شویده .

## دشهید تکبیر ونه

مولوی صاحب عزیز الرحمن « منیب » دعبدالله «عزام» داثر له مخی وائی چی دلوګر په ولایت کي دلوی اختر په ورځو کی مجاهدین داختر دشپو دتیرولو له کبله کورونو ته ولاړل یو نفر مجاهد وویل چی زه نه ځم اوهمدلته پاته کیږم دعرفی په ورځ ورسره یو څو نفره نورمجاهدین پیدا شول اوپه یوی پوستی ئی چی ملحدان پکی اوسیدل حمله وکړه اودغه مجاهد پکی په شهادت ورسید کله چی دده دسنګر انډیوالان خبر شول نو په کوم ځای کی چی ښخ شوی وو هلته ورغلل دقبر خواته ئی ودریدل دوی ډیر کسان وو چی دقبر څخه به ورته دتکبیر اوازونه ( الله اکبر ) په جهر سره راتلل .

---

داواقعه محترم مولوی صاحب دشهید دکتور عبدالله «عزام» په لیکلی اثر کی له نظره تیره شوی .



## په خوب کی دروسانو دراتګ لیدل

د ښیوی له ولسوالی څخه ملاپیرمحمد وائی چی زما یوه بوډی مور بی بی وه اوافغانستان ته دروسانو له راتګ څخه مخکی ئی خوب ولید مونږ چی دری ورونړه وو راجمع ئی کړو راته ئی وویل زامنو ماخوب لیدلی په دی لنړو اونږدی ورځو کی به روسان مستقیماً زمونږ په اسلامی خاوری تجاوز وکړی نوماله دی ځای څخه وباسی پاکستان ته می بوزی چی دهجرت په ثواب کی شامله شم ، مونږ داخبره دومره مهمه ونه ګڼله خوبیا هم دموروړلی دحقوقو په اساس ورونړو زه مکلف کړم چی مور درسره بوزه ماهغه پاکستان ته راوسته ، دلته دڅوشپو ورځو تیر ولو وروسته احوال راغی چی روسان راغلی دی اوزمونږ په خاوری ئی تجاوز کړیدی ، نوچاچی زما دمور دا خوب اوریدلی وو تعجب ئی کولو .

---

ملاصاحب پیر محمد په شاړی ملا مشهور ، باجړئته عالم اوښه مقرر دی .

## په ویښه اوالهام دروسانو دراتګ خبر

ملاصاحب پیر محمدپه یوی بلی واقعی کی دخپلو سترګولیدلی حال بیانوی او وائی چی زما یوه خورره اعصابی تکلیف ئی درلوده په کابل کی دکمونیتسی حکومت له رامنځته کیدومخکی به ئی کله ناکله چیغی کړی چی هغه دی کفر راغی ، روسان راغلل هغه دی فلانی ( زمونږ دکلی یو نفر نوم به ئی واخیست ) حاکم شو ، نو داخبری به مونږ ددی مریضتیا اووهم باله

خودوخت له تیریدو سره کمونیستی حکومت رامنځته شو، دثور کرغیړنه کودتا وه شوه ، روسان هم راغلل ، اوهغه سړی چی دهغه نوم به ئی اخیست که څه هم بی اخلاقه ناپوهه اوجاهل شخص وو زمونږ حاکم مقرر شو په دی توگه هغه ناری به چی وهل کیدی هغه ټولی حقیقت اوربنتیا شوی .

---

ملا پیر محمد یوه ښه موعظ ،مقرر اوباجرئته عالم دی چی په کوهات رودیوه مسجد کی امامت کوی .

## شل شپی وروسته دشهید حال

همدا ملاصاحب خپله یوه لیدلی قصهٔ داسی کوی چی زمونږ دکلی ترخنگ یو بل کلی وو دملحد رژیم دطیارولہ خواپری سخت بمبارد وه شو کلی ټول وران ویجاړ اوډیر کسان پکی دخاورو دلاندی شول مونږ ددی کلی ټول ځوانان اومشران دحال معلومولو لپاره هلته ورغلو چی له تحقیق وروسته داثابته شوه چی یو سلوشل (۱۲۰) کسه سړی ، ښځی اوماشومان شهیدان شوی اوڅه کسان دخاورو څخه دلاندی حصاردی مونږ ورڅخه لوټی اوخاوری ، لرگی اوتیږی واړولی شهیدان مورابهر کړل اودفن موکړل ، شل شپی وروسته دا ثابته شوه چی یو نفر لا تراوسه دخاورودلاندی حصار دی مونږ هغه هم ولټولو اوپیدا موکړ پدی شهید پوره شل شپی وتلی وی چی قواری ئی هیڅ تغیر نه وو کړی اوډیر خوږ ، معطر بوی ورڅخه پورته کیده چی زه ددی بوی خوږوالی حق حیران کړم چی دبدر اواحد شهیدانو یادونه ئی تازه کړل .

## قدرتی غوبنه موندل

یو نفر مجاهد قصه کوی چی دلوگر ولایت دکلنگار له خوښی څخه پیښور ته روان وو له ماسره ۱۳ نفره مجاهدین او ۱۷ نفره دملیشی تسلیم شوی عسکر وو چی پدی توگه زمونږشمیر دیر شو(۳۰) نفروته رسیده کله چی ددوبندی منطقی ته ورسیدو نو سخت وږی شو هلته موله څوکورونو څخه ډوډی وغوښتله هغوی راباندی دجاسوسانو گمان وکړ هیچا ډوډی نه راکوله ، مونږ.ویل راځی په زور ورڅخه ډوډی وخورو بیا څنی کسانو وویل چی دا خوظلم دی بس خپل منزل ته مو په وږی گیډه دوام ورکړ په لاری کی مویوه کڅوړه پیدا کړه هغه موچی لوڅه کړه نوغوښه پکی پرته وه غوښه موپخه کړه هغه مو وخوړه مونږټول پری ماړه شو راڅخه زیاته‌هم شوه هغه موڅه نوروکسانو ته ورکړه اوڅه مو کورونوته یوړه .

---

داد ۱۳٦۳ کال واقعه ده چی روایت اوحکایت یی محمد یاسین کړیدی .

## په ماته پښه اوږد منزل

یونفر مجاهد چی دلوگر ولایت دقطب خیلو اوسیدونکی دی قصه کوی چی په یوه جگړه کی په پښی ولگیدم پښه می زخمی اوماته شوه داچی عملیات روان وو اوله بله پلوه هلته نه داکتر وو او نه دتداوی څه بند وبست وو نوزما لپاره صرف یو نفر مؤظف شو چی دا به درته آس یا قچر پیدا کړی اومونږ نوربه خپلو عملیاتو ته دوام وزکړو ، هغه نفر ولاړ نه ئی اس پیداکړ اونه قچر نوماورته وویل چی راځه په الله«ج» توکل دی زه خپله ځم پښه می

په توتو اودسمالو وتړله اودواړه راروان شو نه می پښی درد کړیدی اونه می څه ستړیا حس کړیده حتّی چی په همدی ملاته پښه زه دتری منګل پوری ورسیدم

---

دغه نفر اوس په هماغه پښه ګوزړ اودبده بیری مهاجر ستاپ ترڅنګ موچی ګیری کوی .

## دمجاهدینو غیبی زیادت

دپکتیا ولایت له ځاځیو څخه یو نفر چی محمد صفر نومیږی اوډرایوردی خپله یوه لیدلی واقعه داسی بیانوی چی ځاځیو ته قواء راغلی وه مونږ شل نفره دهغی مخی ته ورغلو به لاری کی راسره بیخی ډیر مجاهدین چی تعداد به تی زرو تفروته رسیده ملګری شو مونږ ویل چی دابه هم دکوم تنظیم څخه راغلی کسان وی نوشریك جنګ موشروع کړ دښمن شکست وخوړ مونږ کامیاب راستانه شو لیکن دلاری په اوږدو کی راڅخه ټول نفر غائب اونادرکه شو .

په خاص نیت چی هرسړی کوی جهاد
پاك الله بـه ورسـره کـوی امـداد
که کومك دیو الله مونږ سـره نه وای
روسان کله تښتیدل له دی هـیواد



## مجاهدين په سپينو جاموکي ليدل

مجاهد محمد عمر چي دچکړی اوسيدونکی دی وائی چی مونږ اويا (۷۰) نفره مجاهدين دښمن سره دعملياتو لپاره ولاړ وجګړه شروع شوه مونږ ته يو شمير دملحد رژيم عسکر تسليم شول هغوی مورراروان کړل دلاری په اوږدو کی ئی مونږ ته وويل چی ستاسی نور ملګری څه شو مونږ ورته وويل چی مونږ خو همدغه (۷۰) نفره يو عسکرو وويل چی داسی نه ده بلکه له تاسی سره بيخی ډير مجاهدين وو ، ټولو سپينی جامی اغوستی وی، يوډول قد ، قامت اوقواری ئی وی اوډير ښکلی ځوانان وو چی دهغوی له وهم څخه تاسی ته تسليم شو .

په جهاد کی لزاوډيرنــه دی حـــساب
شی کوچني ټولی په لوی ټولی کامـياب
که دبدرواقعه څـوك راپـــه يـــاد کړی
دغه سوال ته په هغی کــی شـــته ځواب
ای« ديداره » په جهاد کی ځان کړه سترې
دغه کار کی شته بـــيحده لوی ثـــواب

## دروسانو په ډيرتعداد وژل کيدل

محمد عمردکابل ولايت ديوه عمليات نقل دارنګه کوی چی هلته ددښمن يوی پرتی پوستی دتسليمولو په غرض موبه هغی تعرض وکړ له دريو خواوو څخه موږی جنګ شروع کړ اوهمدادری نقطی موتر سخت اورلاندی ونيولی دښه جنګ ورروسته موپوسته مکمله فتحه کړه مونږ چی دهغوی په

مورچوکی له تسلیمی وروسته گرځیدلونوهغه ځای چی مونږ تراورلاندی نیولی وو اودری خواوی اونقطی موږه خپلوسپکو اوثقیله اسلحو ویشتلی وی نوهلته دومره زیات عسکر اوروسان نه وو مردار لیکن کوم لوری اوطرف چی مونږ داورلاندی نه وونیولی هلته بیخی زیات روسان مردار شوی وو .

---

دغه عملیات دکابل ولایت دبت خاك په یوی پوستی باندی کیدل .

## له اعدام څخه دیو مجاهد خلاصون

یو نفر چی لعل میر نومیږی خپله اوریدلی قصه دارنګه کوی چی په ١٣٦٤ کال دجلال آباد دمخابراتو ترڅنګ مین والوت اودملحد دولت له خوا یو څو نفره ونیول شول دوخت له تیریدو سره نور نفر خلاص اوپه یو نفر داعدام حکم صادر شو ، هغه ته داعدام نیټه تعین اوپه ټاکلی نیټه ډیر کسان دهغه دننداری لپاره راوغوښتل شول بالاخره دغه مجاهد راوستل شو اوخلکوته معرفی شو چی په دومره بجو به اعدامیږی کله چی ساعتونه پوره شو هغه دخلکو منځ ته راودانګل غالمغال جوړشو ، هرسړی سوکونه اوڅپیړی یوپه بل وارولی هر سړی بیرون خواته زور کولو اوټول خلك روان شول دغه مجاهد ځوان هم دخلکو په منځ کی بیرون ووت اوله اعدام څخه خلاص شو ، وائی چی څوورځی وروسته دغه مجاهد ځوان حکومت ته لیك ولیږلو اوورته لیکلی نی وو چی دخدای «ج» دلاری مجاهد څنګه طریقه باندی داالله تعالی په فضل وکرم خلاص اونجات حاصل کړو.

( واالله اعلم )

## دیوکمونست صاحب منصب دغرورذوال

مجاهد محمد اجان وائی چی په ۱۳۵۹ کال دحوت په میاشت کی دپروان له ولایت څخه څونفره زمونږ کلی ته راغلل او میلمانه شول دماښام له لمانځه وروروسته هغوی ټول ماد ډوډی خوړلو اوشپی تیرولو لپاره خپلی حجری ته بوتلل چی شپی له مخی ئی ماته دارنګه قصه وکړه : یوه ورځ زمونږ کلی ته دملحد رژیم عسکر راغلی وو زمونږ له کلی څخه ئی لس نفره مشران ونیول اودهغه ځای عسکری قرار ګاه ته ني بوتلو په یوی قشلی کی ئی بندیان کړو مونږ ته ئی وویل چی تاسی مجاهدینوته ډوډی ورکوی ، شپه ورکوی اولار ، ګودر ورته ښایی ، بس په دی جرم ئی کوټه کی واچولو یوه شیبه وروسته یو کمونست اودهری صاحب منصب راغی مونږ ته ئی وویل چی تاسی به اوس څوک له ماڅخه خلاص کړی لارشی اواوس تاسی خپل خدای «ج» راولی چی له ماموخلاص کړی ( نعوذ باالله ) مونر حیران شو هیڅ توان مونه رسیده پدی کی ده هغه خپله کفری خبره بیا تکرار وله چی یو عسکر راغی کلاشنکوف ئی په لاس کی وه اوپدی ملحد صاحب منصب ئی فیر وکړ اوپه ځمکه ولوید دغه میړنی عسکر ورته خواته ودریدوه ئی ویل چی څنګه شو د خدای «ج» زور دی ولید لو که څنګه ؟

بیائی کلاشنکوف ورته سرته ونیو له اوپدی سرسر ئی وویشت اوهملته ئی مردار کړو ، پدی کی نور عسکر اوڅه منصبدار راغلل مونږ ته ئی وویل چی له تاسی سره څو مونږ مجاهدینوته بوزی ، نوهغوی موله اسلحو سره راروان کړل مجاهدینو ته موورسول اوله هغوی سره ملګری شو .

## دغره له سرڅخه دمجاهدینو ګذارول اوژوندون

دکابل څخه محمد عمر وائی چی یو وخت زمونږ دری نفره مجاهدین دروسانو له خواژوندی ونیول شول له ډیر زجر اوشکنجه کولو وروسته په داسی حال کی چی دبرچو په څوکو ئی هریو سل سل ځایه سوری کړی وو بلاخره ئی دری واړه یوه جګ غره ته وخیژول اودغره له سرڅخه ئی دلاندی ګذار کړل روسانو فکر کولو چی اوس به شهیدان شوی وی خو دالله تعالی په فضل اوکرم دری واړه ژوندی پاته شول اوپه خپلو پښو صحیح سلامت خپلو مرکزونو اوسنګرونو ته راغلل.

## دمجاهدینو په لیکوکی دیوخادست وژل کیدل

دبغلان له ولایت څخه قوماندان جعفروائی چی زه دپنځونفرومجاهدینو سره دکمونستانو دیوی پوستی دلمنځه وړلو لپاره روان شوم خو کله چی دمهمندو کلی ته ورسیدم هلته اشنا مجاهدین راسره مخ شو هغوی وویل چی موږ هم درسره عملیاتو ته ځو ماورته وویل چی ډیره به ښه شی هغوی اتیا (۸۰) نفره برابر شو ، په پوستی مو جنګ وکړ ډیر عسکر مو مردار کړل اوڅه موژوندی ونیول بلاخره پوسته موختم کړه ، خوزمونږ له منځ څخه هم یو نفرولګید اومړ شو کله مو چی دادرس معلومولو لپاره دهغه جیب ولټولو یو سند ورڅخه لاسته راغی چی ددی مړه نفر خادست توب ئی ثبوتولو کله چی تسلیم شوی عسکر راوغوښتل شو هغه وویل چی مونږ یو نفر جاسوس ستاسی په لیکوکی داخل کړیدی دهغه نوم اوشهرت ئی چی مونږ ته

لیدلی وه اوته دجنګ له تاکتیك سره بلد رو خو چی کله ئی هم ددښمن مستور اوغیر مستورهدف به نښه کړیدی مرمی ئی په هدف اصابت کړیدی ،

لکه څنګه چی الله تعالی پخوانی جابر اومنکرقومونه اوقوتونه دخپل زور اوسرکشی سره په مختلفو طریقو سره هلاك کریدی لکه فرعون ئی په رودنیل کی غرق کړ ، قارون په ځمکه ننوتل شو ، دنمرود لپاره وړوکی ماشی دهلاکت سبب وګرځید ، دابوجهل اودفیل دخاوندانو لښکری دتوتکیو په ذریعه ماتی شوی ، نو په همدی توګه په ننني عصر کی دکمونیزم ،الحاد اوروسی سره امپراطوری ذوال الله «ج» دافغان مجاهدینو په لاسونو سرته ورسلو اوثابتولی نری ته ئی ثابته کړه چی اوس وخت کی هم الله «ج» هرجابر اوظالم ، په ډول ډول مدرنی اوعصری وسلی سنبال قوتونه دیوتش لاسی ، کمزوری اودایمان اوعقیدی په وسلی سنبال قوم ( افغان مجاهدینو ) په لاسونو هلاکولی شی .

اوس به راشی دی حقیقت ته چی دکتاب دمحتویاتو په باب موشکونه له زړه څخه لری کوی ، نواول په راشود شهید کرامت ته لکه چی الله «ج» فرمائی :

ولا تقولو لمن یقتلو فی سبیل الله اموات بل احیاءٌ

عند ربهم یرزوقون

یعنی تاسی هغه چاته مړه مه وایاست چی دالله «ج» په لاره کی وژل شوی دی بلکه هغوی ژوندی دی اودرب په نزد رزق خوری .

بل ځای به همدی ارتباط الله تعالی داسی ارشاد کوی :

ترجمه : هغه څوك چی دالله «ج» به لاه کی وژل شویدی هغوی ته مړه

وښوده نو همدانفر وو چې مړ شوي وو نو پدې قسم د ۸۵ نفر وپه منځ کې یو نفر خادست الله تعالی هلاك کړ اودمجاهدینو صف دیو خادست څخه ددښمن په لاس پاك شو .

## دروسانو څخه دیو نفر خلاصون

یو نفر لعل میرنومیږی دروسانو څخه دخپل ځان دخلاصی په باب وائی چې په ۱۳۶۳ کال دکامی ولسوالی ته دروسانو قوأ راغلی وه هلته زما کور وو چې له پیښور څخه یو نفر زما خپلوان زمونږ کورکی میلمه وو دغه راغلی میلمه لاجبرنومیده نودروسانو له قوی سره په یو کلی کی مجاهدینو جگړه وکړه اته کسه روسان ئی مردار کړی وو نورروسانو دانتقام په خاطر دبیگناه کسانو په نیولو پیل وکړ . پدی کی زمامیلمه لاجبر هم ونیول شو اوپه ټانك کی ئی واچولو کله چې زه خبر شوم ورپسی ورغلم هغو ظالمانو ته می وویل چې دانفر پریږدی اوددی په عوض به زه درسره لار شم هغوی راسره ومنله هغه ئی خوشی اوزه په تانك کی ورسره کښیناستم هلته ئی دغره یوی لمنی ته چې شیرگړنومیږی بوتلو نورئی هم ډیر کسان نیولی وو قطار ئی ودرولو مشرروسی راغلو کله به ئی ویل دلته ئی وولی کله به ئی ویل جلال آباد ته دی بوتلل شی ماخدای «ج» ته سوال وکړ چې ای الله ماخو په بل میلمه اومسلمان غیرت کړی نوته راباندی رحم اومهربانی وکړه نوهغه مشر روسی راته اشاره وکړه له قطار څخه ئی وایستلم څه خبری ئی وکړی تر جمان راته وویل چې څه کورته ولارشه ته خلاص شوی زه خپل کورته را روان شوم خو، دهغه نورروهیڅ پته ونه لگیده چې څه شوی به وی .

***

## دخپل شهادت پیشگوئی کول

دکابل له پغمان څخه عبدالقدیر وائی چی هلته زمونږ مرکز وو یوه ورځ زمونږیو همسنگر چی کاظم نومیده یوی ونی ته لاس کړ یوه دانه میوه ئی راوشکوله اووه ئی خوړله مونږ ته ئی وویل دابه زما ورروستی میوه وی په همدی ورځ تعرض ته ولاړو جنگ مووکړ همدغه مجاهد کاظم ددښمن په مرمی ولگید اوپه شهادت ورسید .

## دوینښتانو سپینیدل

مطییع الله قوماندان وائی چی یو نفر مجاهد راته په شهادت ورسید اوښخ موکړ لیکن دهغه دسر یو څو ویښتان می د تبرك اویادگار په توگه له ځان سره وساتل اوپه جیب کی می وساتل څه موده ورروسته چی داویښتان ما له جیب څخه راوایستل نو سپین شوی اویو څه لوی شوی وو نو ماهغه ویښتان تر ډیری مودی له ځان سره ساتلی وو چی کله به می وکتل نوله خپلی اندازی څخه اوږده شوی وو .

## له ورانښت څخه دزیکاویه جوړیدل

له پنجشیر څخه قطب الدین نقل کوی چی یو وخت له کابل څخه دملحدانو قواء راغله اوعسکرئی پیاده کړل هلته زمونږ ذیکاویك ولاړ وومونږ غوښتل هغه عیار کړو هر څومره کوښښ موچی وکړ هغه خراب شوی وو اونه جوړیده نژدی وو چی عسکر راباندی راوخیژی اومونږ ونیسی مونږ دخدای «ج»په نوم یو پسه ذبحه کړ اوخدای «ج» ته موسوال وکړ چی یاربه

زمونږ چاره وکړی مونږ بیا زیکاویك ته ورغلو دمعمولی شان لاس وهنی وروسته هغه جوړشو په روسانو موهمدی زیکاویك باندی فیرونه وکړل اوهغه وتښتیدل .

## دمجاهدینو په خیمی اورلګیدل

دپکتیا ولایت ژوری څخه ضابط محمد عمر وائی چی په ١٤٠٥هـ ق دشوال په ٢٤ نیته ددښمن د BM٤١ یوه مرمی راغله اودیوی خیمی ترڅنګ ولګیده خیمه اودهغی ټول ملحقات وسوځیدل اوله منځه ولاړل اواورئی واخیست په خیمی کی مجاهدین هم ناست وو لیکن دخدای «ج» په فضل ټول روغ جوړ اوصحیح سلامت پاته شول حتی یوکس هم زخمی نه شو.

## دزیکاویك ترڅنګ دبم خنثی کیدل

ضابط عمر په یوی بلی واقعی کی وائی چی دپکتیا دخوست په یوی سیمی کی دمجاهدینو دزیکاویك دمورچی لپاسه ددښمن دجیټ الوتکو له خوا بمبارد وه شو یوبم ئی راخوشی کړو کله چی ځمکی ته ورسید نو پنځه بمونه ورڅخه جوړشول اودا پنځه واړه ټول خنثی شول اود الله «ج» په فضل منفجر نه شول که انفجار ئی کړی وای نو زیکاویك اودهغه ټول پرسونل به له منځه تللی وو .



## دروازه په خپله خلاصیدل

له لوگرڅخه محمد شعیب وائی چې هلته موله دښمن سره مقابله وه هغوی ته دسراومال دتاوان رسولو وروسته له مونږ سره مرمی خلاصی اوراباندی سهار شو مونږ دهغه ځای یوی لنډی قلعه ته دستراواخفا لپاره ورغلو لیکن هغه کلپ ( قفل) وه نه خلاصیدله نژدی وو چې دښمن موووینې اوگیرمو کړی مونږ.خدای «ج» ته سوال وکړ چې یا الله ته راسره امداد وکړی په دی کې دروازه خپله خلاصه شوه اومونږ ټول ورننوتلو .

## په روسانو اسمانی اورنازلیدل

دوردگوله ولایت څخه مولوی محمود وائی چې ماته می زوی ویلی دی چې په وردگو کې یوځل دروسانو قوا راغله هلته زمونږ دمرکز په خواکې.یې قرار گا جوړه کړه ، غوښتل نې چې زمونږ مرکزونه ونیسی لکین داسمان له خوایوه سره شغله راغله دروسانو په قرارگاه اودتجمع په مرکز ولگیده په دی ورځ قوا بیرته وتښتیدله کله چې مونږ هلته ورغلو دروسانو پښی ، لاسونه وینی اونوراندامونه پراته وو اوډیر وسایل ورڅخه پاتی شوی وو ، مولوی صاحب وائی چې زه گومان کوم دابه دابابیل اوحنین په څیرواقعه وی .

## دروسی طیارو بمونه اوخنثی کیدل

طالب العلم جلادخان وائی چې په ۱۳٦٣ کال به هره ورځ دملحدینو طیاری زمونږ منطقی ته راتلی اوبمبارد به ئې کولو مونږ به زنانه ، ماشومان دهغه ځای نژدی غره ته چې ځرپابا نومیږی بوتلل ترماښامه به هلته ناست وو

یوه ورځ طیاری راغلی اوپه همدی ځای ئی بمونه راخوشی کړل هغه ځای کی چی ماشومان اوزنانه ناست وو له ښنگ ئی ولویدل لیکن بمونه په ځمکه ننوتل اوانفجارئی ونکړ ټول خنثی شول .

---

جلاد خان اوس دامام ابوحنیفه « رح » په مدرسه کي دیولسم صنف شاگرد دي .

## دیو مجاهد پټکی سوری کیدل دهغه بچیدل

دپکتیا ولایت لژی څخه قوماندان یارخان وائی چی مونږ یوځای ته روان وو په ۱۵-۷-۱۹۸۵ نیټه ددښمن د BM٤١ یوه مرمی زاغله مونږ ته په پنځه متره فاصله کی ولگیده مونږ ئی په خاورو اودوړوکی پټ کړو زما دسرلنگی په پرچو سوری سوری شوه ماالونورو مجاهدینو ته دخدای «ج» په فضل هیڅ ضرر ونه رسید .

## دشهید کم وزنی اوخپله کښیناستل

دکونړ له ولایت څخه جعفر نقل کوی چی په ١٤٠٥هـ ق کال موله دښمن سره جگړه وکړه یو نفر مجاهد چی شیر زمین نومیده په شهادت ورسید ماوغوستل چی مرکز ته ئی نقل کړم هغه په شاباندی پروت وو زه ورغلم غوښتل می په شانی کړم هغه په خپله کښیناست پۀ شامی کړ زمونږ مرکز چی دغره په سروو له هغه ځایه پوری می په یوه دمه اومنډه ورسولو نه می څه ستړیا ولیدله اونه می څه ستومانی حس کړیده .

***

## په محاصره کی ددښمن نه لیدل

دپکیتا ولایت له ارگون څخه قوماندان خالد « فاروقی » وائی چی یوځل دوخت جابر پولیس زمادنیولو لپاره زما کورته راغلل زه دعادت خلاف په دی ورځ له کوره وتلی ووم ماته احوال راغی کوردی محاصره دی زما حوصله تنگه شوه ورغلم گورم چی له کورمی پولیس چاپیر ولاړ دی زما سترگی ړکی نه شوی ورغلم له محاصری ورداخل شوم هغوی ونه لیدلم .

## دحکمتیار صاحب نه لیدل

۱- فاروقی صاحب وائی چی یو وخت زه له حکمتیار صاحب سره ناست ووم دوخت پولیس ورپسی راغلل اودده عکس ورسره وو هرڅومره ئی چی یوه خواته اوبل خواته وکتل هغه ئی ونه لیدلو بلاخره چی هغه ئی پیدا نکړ نو واپس لاړل .

۲- په یوی اجتماع کی چی اکثره تحریکی وروڼه پکی وو هلته پولیس راغلل غوښتل ئی زما په شمول نورتحریکی وروڼه ونیسی زه له اجتماعی څخه ووتلم پولیسو راته رډ رډ کتل لیکن زه هغوی ونه لیدلم .

## دډیری مودی شهید

یونفر مجاهد صلاح الدین قصه کوی چی په ځاځیو کی راته په ۱۳٦٥ نیته دروژی په میاشت کی یو نفر شهید شو مونږ هغه هدیری ته دښخولو لپاره یوړ دقبر په کندلو موشروع وکړه قبر چی ژورشو هغی کی یوبل شهید

راووت چی ډیر ښکلی ځوان وو اودا معلومه نه شوه چی څو کلونه به پری وتلی وی خو جسد ئی هیڅ تغیر اوبدلون نه ووکری .

## په بس کی له پولیسو دحکمتیار صاحب نادرکی

یوعینی شاهد وائی چی حکمتیار صاحب کله دوخت له جیل څخه خلاص شو دوباره له تعقیب لاندی ونیول شو دهغه عکسونه د کابل څلورواطرافو نوتلاشیو ته ولیږل شول ترڅو دستگیر شی هغه په بس کی سپور شو غوښتل ئی ځان کومی اطرافی سیمی ته ورباسی دلاری په اوږدوکی دری ځلی دهغه تلاشی وه شوه بس ته به چی دتلاشی پولیس پورته شو دده عکس به ورسره وو خوپولیسو دی ونه لیدلو .

(والله اعلم)

## دشهـــــید خـــولی

محمد صاحب وائی چی دگردیز په زرمت کی یوطالب العلم چی عید محمد نومیده مونږ ته شهید شو ، مونږ دریمه ورځ ورغلو دهغه په تندی خولی راغلی مونږ هغه وچی کړی دعطرو بوی ورڅخه پورته کیده ، مونږ به چی خولی وچی کړی په تندی به ئی بیا خولی راغلی په باربار مونږ داسی کول اوخولی به پری راتلی دعطروبوی به ئی کولو .

* **

## دوران موټر جوړیدل

یونفر مجاهد چی خان نومیږی قصه کوی چی زه دیو شهید جنازی ته ورتلم په صوابی کی ئی کور وو ، ماته دشپی احوال راغی موټر نه پیدا کیدو ،زمونږ دیو خپلوان چی شاول نومیده یو موټر وو چی څوورځی مخکی ئی کوره میل کرك ( مات ) شوی ووګرځیدلی نه شو په کورکی ئی موټر درولی وو ، څرنګه چی شهید دده هم له خپلوانو څخه ووهغه وویل که چیرته دا واقعی شهید وی نو مونږ به همداوران موټر هلته ورسوی ، موټر ئی چالان کړاودکمپ سبه ډیر کسان پکی کښیناستل په ډیر سبه شان ئی مونږ دشهید کورته ورسولو همدغه مجاهد ( خان ) وائی چی تریوه کاله پوری ئی ددی موټر هغه ورانه پرزه ترمیم نکړه اوډیر سبه کارئی کولو .

---

نوموری شهید منګل نومیږی ، جنازی ته بی زه هم تللی ووم دواقعی روایت کوونکی خان یو تکړه اومخلص مجاهد دی په ډیرو عملیاتو کی ئی برخه اخیتسی په ستنګر ویشتلو کی مهارت لری په سلم خیلو کی اوسیږی البته اوس دبده بیری په ۳ نمبر کمپ کی مهاجر دی .

## دشهید په کورکی دګلانو غیبی امیلونه

مجاهد خان دمنګل شهید په مناسبت یوه بله لیدلی واقعی داسی بیانوی چی کله زه ددی شهید کورته ورسیدم نودشپی ډیر ناوخته وو اودهغه په حویلی اوانګړ کی دتازه تازه ګلانو امیلونه زړیدلی وو چی ددی ګلانو دامیلونو تنابونه دانګړ یوی خوا اویلی خواته تللی راغلی وو زما سره یو

سپین زیری حاجی وو چی لونگین نومیده دهغه سردگلانو په امیل کی بند شو ماورڅخه امیل پورته کړو چی ونه شلیږی ، مافکر کولو چی دا امیلونه به دهغه قوماندان اونورو مجاهدینو له ځان سره راوړی اودلته زړولی وی ، خو چی کله سهار شو اورڼا شوه دګلانو یو امیل هم نه وو زه حیران شوم چی دا کوم ساده سړی لری کړیدی ډیر خفه شوم دشهید له مور څخه می پوښتنه وکړه چی داګلان او امیلونه چاخلاص کړیدی هغی وویل کوم ګلان؟ماورته وویل هغه چی بیګاه شپه دلته زوړند وو هغی وویل بچیه دلته خوهیڅا هم ګلان نه دی راوړی اونه چازوړند کړیدی ، خان وائی چی داهر څه ماپخپلو سترګو لیدلی کتلی دی .

## دمجاهدینو کموالی ، ددښمن خسارات

دهرات له ولایت څخه عبدالله « خاموش» وائی چی ماسره دارتباط مسئول نجیب الله ، امر عامه خلیفه سبحان اونور ډیر کسان وو زمونږ منطقی ته دروسانو اوداخلی کمونستانو قوأ راغلی وه چی ٦٥ټانګونه اوزر(١٠٠٠) عرادی موټر ورسره وو اوزمونږ دمجاهدینو تعداد ٤٥٠ نفره وو په ١٩٨٦/١/١٠ نیټه مو ورسره جګړه وکړه قوأ بیرته وتښتیدله چی ٣٣٤ کسان کمونستان اوروسان ، مونږ ژوندی ونیول ، زمونږ څخه صرف پنځه نفر شهیدان شول .

په جهاده کی لږ اوډیر نه وی پــکار
پاك الله «ج» دصادقانـو مدد ګــار
دطالوط قصــه راياده کړه جنګیره
له ډیـر والــی ددښــمنه مکـره دار
افغان جهاد دروس طاقــت کړختم
ځکه هسکه شمله ګرځی نن «دیدار»

## په غار کې دزخمي مجاهديوه مياشت پاشيدل

مولوی صاحب سید حکیم دیوه شاګرد په حواله نقل کوی چی دمیدان ولایت ته قواء راغلی وه دمحلدینو ددی قوأ راتګ دلوی اخترپه ورځ وو هره ورځ به یو سیل طیاروڅوڅو دفعی بمبارد کولو چی تقریباً (۱۲۰) نفره مجاهدین پکی شهیدان شول اویو نفر ژوندی ورك شو ، یوه میاشت وروسته یو شپون کلی ته راغی وه ئی ویل چی هلته دغره په یو غار کی یو نفر زخمی پروت دی دکلی خلك ورغلل دغه زخمی ئی راوړ ډوډی اواوبه ورته کیښودل شوی هغه چی له ډوډی څو کپونه وکړل له خوړلو ئی انکار وکړ بیائی اوبه راواخیستلی څو غوړپه ئی چی وڅښلی نوهغه ئی له ځانه لری کړی ، خلکو ورڅخه پوښتنه وکړه چی دا ډوډی اواوبه دی ولی لری کړی ته خود ډیرو خت نهارئی دی زخمی وویل ددی ډوډی اواوبو هیڅ خوند اومزه نشته ماته هماغه ډوډی اواوبه راوړی کومی به چی غار کی راته رسیدی اوراکول کیدی ددی ډوډی خوهغسی خوند نشته اونه ددی اوبو هغسی مزه شته ، کوم خوراك چی ماته په غار کی راکول کیده هغه له دی څوواری زیات مزیدار اوخوندور وو چی دا خوراك ډیر بی خونده اوبی مزی دی .

---

وائی چی اوس معلومات نه لرم دغه نفر به مړوی که ژوندی . اوکوم رزق چی دی مجروح ته په غارکی رسیده شاید داهم دالله«ج» له خوا پرډول خاص رزق وی ځکه ئی خوند زیات وو .

( مولوی صاحب سیدحکیم دحزب اسلامی دقضادریاست غړی دی )

***

مه وایاست بلکه هغوی ژوندی دی تاسی پری شعورنه لری .

نوداچي شهیدان دالله «ج» دحکم په اساس ژوندي دی اورزق خوړونکی دي اوهغوی ته مړه ویل ستره گناه بلل شویده نوله دی به لابل غټ کرامت اومرتبه څه وی .

ریښتیا هم هغه څوك چی دکلمة الله داعلی په خاطرخپل شیرین ځان نذرانه کوی نه ئی دخپل مال پروالرلی وی نه دعیال اونه په خپل سرحصارشوی وی اوصرف دالله«ج» دکلمی داوچتوالی په خاطر ئی ځان قربان کړی وی بیا هغه ته مړویل دشرم خبره اولویه گناه ده .

اوس به راشو مجاهدفی سبیل الله ته پدی ارتباط الله «ج» فرمایی :

ولولادفع الله الناس بعضهم ببعض لفسدت الارض

یعنی که چیرته الله دفع کړی نه وائی بعضی خلك په بعضو باندی بی شکه تباه شوی به وای ځمکه ( خلك )

په یوحدیث شریف کی راځی :

قیام ساعة فی الصف للقتال فی سبیل الله خیرمن قیام ستین سنة

یعنی دخدای «ج» په لاره کی یو ساعت جنگ کول دشپیتو کالو عبادت څخه غوره دی.دبخاری شریف په یوحدیث کی راځی :

په جنت کی سل درجی دی چی خدای «ج» دفی سبیل الله مجاهد لپاره تهیه کړیدی چی دهری درجی په مابین کی تفاوت دځمکی اواسمان په اندازه دی .

واقعاً چی له دښمن سره مستقیمه مقابله له بهترین عمل څخه ده او هغه څوك چی له دښمن سره مخامخ جنگیری په حقیقت کی له اسلامی حریم څخه

## دوریځی په ذریعه له بمبارد څخه نجات

له پغمان څخه قاضی غلام ربانی وائی چی یوه ورځ زمونږ مرکز ددښمن دطیارو داور څخه دلاندی شو اوهری پنځه دقیقی بعد به یوه جوړه طیاری دبمبارد لپاره تلی راتلی مونږئی ډیر په عذاب کړو خدای «ج» ته موسوال وکړ چی یاالله ستاهیله ده په دی کی یوه توره وریځ زمونږ دمرکز لپاسه راپیدا شوه ، گرداوغبار ورسره وو له طیارو څخه هدف ورک شو اوبمبارد ئی نه شو کولی په داسی حال کی چی زمونږ دمرکز شا وخواته نور ټول اطراف آسمان شین وو هلته نه وریځ وه اونه څه گرد اوغبار وو .

## دشهید نه خاوری کیدل

مولوی صاحب سید حکیم وائی چی په ۱۳۵۸ هـ ش کال د ننگرهار ولایت دکامی په ولسوالی کی یو نفر مجاهد چی ډیر تنکی زلمی اوښکلی ځوان وو اودمزارشریف اوسیدونکی** په شهادت ورسید مونږهملته ښخ کړ، یو کال وروسته زه په هغه لاری تیریدم له ځان سره می وویل چی دی مسافر شهید ته به دوعاوکړم دقبرڅنگ ته ئی ورغلم قبرئی نړیدلی وو چی ښه می ورته وکتل نوپه قبر کی صحیح سلامت پروت وو وجود او اندامونه ئی ټول روغ اوسالم وو هیڅ تغیر اوتبدیل ئی نه ووکړی اوس لس کاله بعدزه بیا په همدی لاری تیریدلم چی هماغسی سالم پروت وو اوبدن ئی نه وو خاوری شوی

---

فضل مولاء لعون» چی دهمدی کتاب دچاپ دنظر څخه تیرولو هیئت دی هم ددی واقعی دصحت تصدیق کوی ، په دومره وضاحت چی دغه نفر ضابط صابر نومیده اوپه همدی کی نه بلکه دلاری ترڅنگ په عاجله توگه دمجاهدینو په لاسو ښخ شویدی .

## دبمبارد په ذریعه مجاهد ونې ته گذاریدل او
## هغه ژوندی پاته کیدل

له پغمان حخه عبدالباقی وائی چی په ۱۹۸٦/٤/٢٤ م نیټه دکابل دگوډاگی اوکمونستی رژیم له خوا دمجاهدنیو دتجمع په یو مرکز بمبارد وه شو دبم دانفجار دشدت له کبله یو نفر مجاهد دباغ دیوی ونی سرته گذار هلته په شاخونو کی بانډه اوبیهوشه شو نورومجاهدینو فکر کولو چی ټوټی ټوټی شوی به وی اوله بم سره به ئی غوښې اوهډوکی الوتی وی څه وخت وروسته وی باغ ته دخاشاکو لپاره څه زنانه راغلی پاس په ونی کی ئی څه ولیدل ونه ئی وخوزوله مجاهد راولویده هغه په هوش راغی دی مجاهد له زنانه ؤ څخه پوښتنه وکړه چی زما ملگری څه شو دوی ورته ووېل قوأراغلی چیرته به ئی ځای نیولی وی نو دا مجاهد ئی له ځان سره بوتلو اوخپلو ملگروباندی ئی وسپارلو .

---

داواقعه عبدالباقی په فارسی ژبه عبدالله «عزام» ته لیکلی اوهغه ته دالفتح په غنډ کی حکمتیار صاحب په عربی ژبه اړولی او ترجمه کړیده .

## په خوب کی دشهید هدایت

دلوگرولایت دجهاد امیر حاجی احسان الله وائی چی ماته غلام سخی ووېل چی دپکتیا ولایت په څمکنیو کی دحزب اسلامی دیوقوماندان سره چی رحیم شاه نومیده زما وړور یوځای شهیدان شول اوهملته مودواړه ښخ

کړل . جنگ روان وو اومونږ هم ورته سنگرونه نیولی وو په دوهمه شپه می شهیدان په خوب کی ولیدل ماته یی وویل چی مونږ روسان له قبرونو څخه باسی ماداخوب چندان مهم ونه گڼلو په دریمه شپه ئی بیا په خوب کی راته وویل که روسانو سره جنگ ونکړی مونږ له قبر څخه باسی ، نوزه درحیم شاه ورونو ته ورغلم هغه می له حاله خبر کړل مجاهدین موله ځان سره واخیستل دشهیدانو دقبرونو په لوروړغلو چی هلته ورلنډ شو څه گورو چی روسان دقبرونو په لوڅولو لگیادی مونږ پری فیرونه وکړل هغوی وتښتیدل چی قبرونوته ورغلو نوهغه ئی لوڅ کړی وو چی البته دکوم غرض لپاره به ئی بل کوم ځای ته وړل مونږ بیرته دهغوی قبرونه جوړ کړل اودقوا دتښتیدلو تروختته مو پری پهره کوله .

## دتکبیر په ناره دتانک سوزیدل

معلم ریدیگل ، لعل میراوبیدار گل په بیلو بیلو مواقعو یو ډول او مشابه حکایت کوی چی دقندهار ولایت ته قوا تللی وه هلته ورځخه دمجاهدینو په لاس ډیر تانکونه اوموټر ویجاړ شول ،روسانو یو ماشوم راوستلو ورته وه ئی ویل تاسی داتانکونه څنگه سوزوی ماشوم وویل په تکبیر ناری سره ، روسانو وویل تکبیر څه دول وسله ده ، ماشوم وویل تانك راوله ، روسانو تانك راوست اوهلك ته ئی ودرولو دی هلك یوه وره تیزه راواخیسته خدای «ج» ته ئی سوال وکړ چی یا الله په سخت ازمیښت کی راغلی یم دغو دهریانو ته می خجالت مکړی دزړه له جوشه ئی پری ( الله اکبر ) کړل په تانك ئی تیزه گذار کړه ، تانك اور واخیست ، لمبی اودود ئی

پورته شو، روسانو وويل چې له دوی سره غیبي کومك دی ، هلك ته ئی وويل خپل کورته ځه اوله دی کار څخه لاس وانخلی .

په دی توګه دغه معصوم هلك خدای «ج» له خجالت څخه وساتلو .

## دخاورو څخه لاندی دماشومی پاتیدل

قوماندان زرجان وائي چې زمونږ په کلی دملحددولت دطیارو له خوا سخت بمبارد وه شو یو کورلوټی لوټی اوکنډر شو څوکسان پکی زخمیان شو ، اته ساعته وروسته ثابته شوه چې یوه جیلۍ له خاورولاندی ده نوموږ ورغلو خاوری اولوټې مو ورڅخه واړولی هغه مو دخاورو دلاندی پیدا کړه چې دوړی ئی په لاس کی وه مونږ ورڅخه پوښتنه وکړه چې کوم ځای خو به دی نه وی زخمی شوی هغی وويل چې نه ! څه خبره ده ؟ مونږ ورته وويل چې ته خودبمبارد په ذریعه له خاورو لاندی شوی وی هغی وويل چې زه خوویده ووم اوتاسی له خوبه رابیداره کړم ډیره په ارام اواسودګی سره ویده ووم زه په هیڅ نه یم خبره شوی .

---

داجیلی دحاجی شینواری لورده، اوس هم ژوندی اودټل په توړپل کی اوسیږی

## دلوږی په وخت کی دوړی پیدا کیدل

دکابل ولایت دخورد کابل له باغکی څخه قوماندان سید کریم وائی مونږ یوولس نفره مجاهدین پریوی پوستی باندی دعملیاتو لپاره ولاړو ، زمونږ څخه شپږنفره شهیدان شول ، مرمی راسره خلاصی شوی مونږ واپس راروان

شو خودلاري په اوږدو کی ډير وړی اوتږی شو يوی خواته مووکتل هلته يوه خيمه ولاړه وه مونږ ورغلو يوه بوډی ښځه پکی ناسته وه ،هغی ژر ژرچای اوډوډی تياره کړه هغه مووخوړله اوله هغه ځای ځخه روان شو چی يوه ټوټه وړاندی ولاړو شاته مو وکتل خيمه نه وه .

## شهيد کلاشنکوف محکم نيول

دلوګر ولايت له برکی برك ځخه مصطفی (بدر) وائی چی يونفر مجاهد راته شهيد شو ، کلاشنکوف ورسره وو نه ئی پريښودلو څوڅو نفره ورغلل کلاشنکوف ئی ورڅخه زور کړ خوچاورڅخه وانه خيستلی شو بلاخره زه خپله ورغلم ورته وه می ويل دا دکونډو ، رنډو اوبی وزلو افغانانو امانت دی نودا امانت ماته راکړه چی خپلو حقيقی وارثانو ته ئی وسپارم هغه يودم کلاشنکوف پريښود .

## د شهيدانو ارمان ، دکونډو ،يتيمانو اومجاهدينو دوعا قبليدل

دروسانو دظلم اووحشت دلاسه چی ټول افغانان په تنګ راغلی وو هر چا په په مسجد ونو ، کوروتو ، هديرو اوسنګرونو کی دا زاری او دوعا ګانی کولی چی يا الله «ج» دروس اوکمونيزم قانون تباه اونابود کړی ، يا الله «ج» روس پارچه پارچه اوټوټی ټوټی کړی يا الله «ج» ددی وحشيانو له شر ځخه ټوله نړی خلاصه کړی !

نوتاسی وليدل چی دغه ټولی دوعاګانی اوزاری قبولی شوی ، په روس

کی کمونیزم لغو ، دروس اتحاد رسماً منحل اوهلته ازاد دولتونه رامنځته شو ، چی داخبره محترم حکمتیار صاحب په یوی رسمی اعلامی کی دارنگه اعلاموی :

دشهیدانو ارمانونه ، دکونډو ، یتیمانو، مجاهدینو اومظلومو خلکو فریاد اوزاری دلوی خدای «ج» په دربار قبولی شوی ، دلوی خدای «ج» په فضل اومهربانی سره نن دنړی ستر استعماری قوت اتحاد شوروی رسماً منحل شو اوپه دی ترتیب دافغانستان دشهیدانو ، یتیمانو اومظلوموخلکو فریاد اوزار ی دلوی خدای په دربار قبولی شوی .

---------------

دشهادت ورځپاڼه ، شماره ۱۱٤ دجدی ۳

## شهید ژوندی لیدل

م،ن چی اوس په نصرت مینی کی اوسی خپله یوه لیدلی واقعه داسی لیکی چی داسلامی تحریك یو غړی شهید استاذ اکبر دشب نامو دویشلو لپاره خیرخانی مینی ته تللی وو اودکاکا صمد له کور ځخه ئی شب نامی ویشلي ، کاکاصمد ورته وویل دشپی بندیز له کبله بیرون مه ځه لکین هغه دخپل مسئولیت داداکولو په غرض حصار نه شو اودروسانو دگزمی له خواپه ۱۳٦۰هـ ش دروژی په ۲۵ نیټه په خیرخانه مینه کی په شهادت ورسید ، سبا ورځ چی هلته په یو کورکی دمحصلینو شوری وه زه له نورو ځخه وختی ولاړم ځکه هغه کورچي په هغه کي مجلس کیده دشهید استاد اکبر ځخه غیر بل چاته نه وو معلوم ، نو کله چي زه هغه ځاي ته چي له هغه

ښخه باید مونږ یویوتللي واي ورسیدم څه ګورم چي استاذ اکبر په بایسکل سپوردي دسلام اچولو لاس ئي پورته کړ واوروان شو ، حال دادي چي یوه ورځ مخکي په شهادت رسیدلي وو .

---

دحریت له مجلې څخه صفحه ۵۷ لړني کال

## داخلي کمونست په قبر کي مار

دلوګرولایت له پادخاب ښخه میرګل یوه واقعه بیانوي چي زمونږمنطقي ته دملحدانو قوأ راغلي وه په کورونوکي ئي تلاشي پیل کړه یوملحد صاحب منصب یوه کورته ننوت اوله یوي پاکي بي بي څخه ئي دناجایزه تعلق غوښتنه وکړه لکین دی بي‌ٰٰورته ډیر بدردوویل او کمونست صاحب منصب په غوسه ووت چي زه به دریسي تانك راولم اوپه زور به دي بوځم په خپل جیپ کي سپور شو په لارکي ئي جیپ ټکر شو او دادهري پکي مردار شو ، وائي کله چي ورته قبر تیار شو نو په قبر کي ئي مار راووت اودغه مردار صاحب منصب به ځمکي یوي خوا اوبلي خواته غورځولو .

## دشهـــید خوزیدل

له برګ ښخه ماموربیرك وائي چي په شیخك کي زمونږ مجاهد چي انزرګل نومیده به شهادت ورسید ، مونږ هر یو محمد ظاهر، نظر اوعبدالله ورغلو دهغه یو طرف ته ودریدو نو په هماغه طرف ئي دوروخوړ ، بیائي بل طرف ودریدو هغه هم بل طرف دور وخوړ ، مونږ به چي دهغه هر لوري ته

ودريلو هغه به هماغه لورته حرکت کي شو .

## يوکال وروسته دشهيد جسد

يو نفر قصه کوي چي يو نفر مسافر مجاهد زمونږ په منطقي کي په شهادت رسيدلي وو اوهملته دلاري ترڅنگ ښخ کړل شو، يو کال وروسته هلته يو شپون وزي اورمه څروله دباران اوسيلاب له کبله دشهيد قبرلوڅ شوي وو شهيد پکي سلامت پروت وو اوډير ښه بوي ئي کولو .

---

داواقعه دحاجي خاتول زوي محمد اخان بيان کړيده .

## دشهيد کم وزني

مجاهد پاينده محمد نقل کوي چي په شلمان کي زمونږ مرکز وو هلته به يو تانك دطورخم شاوخوا ددښمن پوستوته کله ناکله اکمالات وړل راوړل مونږ دري نفر وتصميم ونيولو چي دي تانك ته به کمين ونيسو ، هغه وو چي يو يو ميل کلاشنکوف اويوميل راکت RPG7 موله ځان سره واخيست ليکن يونفر راڅخه په لاري کي ورك شو مونږ دوه نفره پاتي شو په لاري روان وو چي دښمن وليدلو زما ملگري چي اسمعيل نوميده په مرمي ولگيد اوپه ١٣٦٢/٩/١٢ نيټه په شهادت ورسيد ، زه تنها پاته شوم ، دوه ميله کلاشنکوف يوراکت اويو شهيد راپه غاړه شو ماويل له لاري به ئي يو خواته کړم تر څو دښمن ئي بلي خواته نقل نکړي مادغه دري ميله سلاح څنگ ته واچوله اوشهيد مي په شاکړ ، منزل ته مي دوام ورکړ هيڅ نه ستړي کيدم

ماداسي فكر كولو چي زه تش روان يم آن دشلمان سرته مي سلاح اوشهيد په تنها توگه ورسول .

زما په واسکټ دشهيد وينه توي شوي وه چي ډيره رنگينه اوتازه وه واسکټ مي ومينځلو چي کله وچ شو نو هماغسي سره وينه پري معلوميده ، بلاخره کورته راغلم هلته مي دا واسکټ څو دفعي ومينځلو وينه ئي نه پاکيدله چي اوس مي هم دا واسکت په کورکي ساتلي ، هماغسي په وينو سور اوښه بوي ورڅخه ځي .

---

پاينده محمد په قوم منګل ، په چارسدي کي اوسيږي اوڅوکاله ئي په طورخم کي دملاعليم استاذ سره جهاد کړيدي .

## اوه ورځي په لوږه اوتږه دخاورو دلاندي

دجهاد حربي پوهنتون دارشاد مامورلعل خان ديوي نژدي دوست په حواله وائي چي دننگرهار ولايت شينوارو ته قواء راغلي وه اوسخت بمباردهم روان وو په يو کلي ئي بمبارد وکړ يو دوه پوړيز کورونړيد يوه زنانه اودوه ماشومان ورلاندي حصار شول دکلي خلك يو نژدي غره ته مهاجر شول ، اومه ورځ قوأ ولاړه خلك کلي ته دوباره راغلل ، هغه کور چي نړيدلي وو ، زنانه اوماشومان ورلاندي وو په لټولو پيل وه شو ، خاوري اولرگي چي ورڅخه لري شول نو زنانه ژوندي اوماشومان شهيدان وو ، له زنانه څخه دژوندي پاتي کيدو عوامل وپوښتل شو وه ئي ويل چي لرگي راپاندي ډوودريدل مونږ باندي ئي زور نه وو ، تنفس په اساني سره کيداي شو لکين دخوراك اوڅښاك څه نه

وو ، په شپږمه ورځ يعني له اوس څخه ۱۲ ساعته مخکي داماشومان مړه شول زه هم هلاکت ته نژدي شوي ووم ليکن دسرخواته مي يوتير( گودره) وه دهغه بيخ ته يوڅه لمبدبل پيدا شو دومره اوبه پکي ذخيره شوي چي زما تنده پري ماته شوه اوله هماغو مي استفاده کوله .

## دمجاهدينو دوعاقبليدل

دننگرهار ولايت په حصارك غلجائي کي قوماندان گل ولي دخپلو سترگو ليدلي حال داسي بيانوي چي مونږ په ۱۳٦۱/٦/۱۰ نيته ددي ولسوالي دفتحه کولو لپاره ولاړوپه يو باغ کي ځاي په ځاي شو ، هلته په يوي غونډي باندي ديو مجاهد له خوا چي خانزمان نوميد ، دهشکه دريدلي وه دوه هليکوپترطياري راغلي په دهشکي ئي غوټه ( پيکا ) کړي مونږ ناستو مجاهدينو دخداي «ج» په دربار کي سوال وکړ چي يا الله«ج» ته دا دهشکه اودهغي عمله په خپل فضل سره په امان کي وساتي اودا طياري دهمدي دهشکي په ذريعه نسکوري کړي پدي کي له دهشکي څخه فيرونه وه شول طياری پري دواړه ولگيدی شغلي ئي پورته شوي او اور پکي بل شو دواړه ولويدي زه ديوي طياري جسد ته دليدلو لپاره ورغلم له ولسوالي څخه راباندي دهاوان فيرونه وشول يوه گولي راته په ٤ متره فاصله کي ولگيده زه ئي له ځمکي څخه دوه متره پورته گذار کړم لکين دالله تعالي په کرم راته نور هيڅ ضرر ونه رسيد .

دفاع کوی په دی اساس داسی عمل نشته چی له جهاد څخه بهتروی وګوری
یو شمیر خلک په خپلو کورونوکی څه اسوده ژوند تیروی په خپلو موټروکی
چکری لګوی ، څوک خپلی ګټی کوی ، څوک تجارت اودوکانداری کوی ، نه
ورسره څه غم وی نه کومه ویره ، لیکن مجاهدی فی سبیل الله په کورکی
دخپل عیال اواولاد لپاره نفقه هم نه لری اوخپله هم په ډیر تکلیف اوزحمت
سره نه نیمه ګیډه په غرونو رغونو مزل کوی هره دقیقه اولحظه داخطر
محسوسوی چی اوس به ددښمن دتوپ ، طیاری اوکمین ښکارکیږی ، له
ډیری ستړیائی شونډی وچی ، مخ سپیره اوپښی پولی اوتناکی وی نوله دوی
څخه دغټ اجر خاوند بل څوک کیدای شی .

یا الله«ج» مونږ دخپلی لاری صحیح مجاهدین کړی زمونږ په زړونوکی
دجهاد جذبه پیدا کړی ، چی کله هم زمونږ ژوند پوره کوی نو دشهادت
افتخار راپه برخه کړی .

امین ثمّ امین

دیدار « احمدزی»

لنډ معلومات

۱- ددی لپاره چی دمیلونو شهیدانو یاد دتل لپاره تازه پاتی شوی وی ،
دروان مقدس اسلامی جهاد دمصیبونو زخمونه تکور شوی وی ، سنګر کی
ناستو مجاهدینو اودهجرت په دیارکی مهاجرینو اوټولو مسلمانانو روحیات
اوجذبی پاریدلی وی ، دهغوکونډو ، یورو اویتیمانو په خاطر چی بی اثری
لوند ګرځیدان ، سرتور سرونه اولوڅی پښی دخپلو میړنیو خاوندانو ، ګرانو

## سپین ږیرې سړی اوبمونه خنثي کیدل

مجاهد زلمي حکایت کوي چي دپکتیا ولایت په ځاځیو کي دیو زیارت ترځنګ دمجاهدینو یوه قرار ګاه وه اومونږ هم هلته دجهاد لپاره تللي وو ، دمجاهدینو په دي قرار ګاه څو ورځي مسلسل دروسانو لخوا دطیارو بمبارد کیدلو اودا قرارګاه ئي دسخت اورلاندي نیولي وه لیکن بمونه به په هرځل له قرار ګاه څخه بچ لویدل اوپه قرار ګاه به نه لګیدل ، کله چي بمبارد قرار شو نو مونږ هغي قرار ګاه ته ورغلوتر څو دمجاهدینو حال معلوم کړو هغوي دخداي «ج» په رحم سره ټول روغ وو ، مونږ ورڅخه پوښتنه وکړه چي پدي سخت بمباردکي تاسي څنګه وساتل شوي هغوي وویل چي دا دخداي «ج» کومك وو ، کله به چي طیاري راغلي اوبمونه به ئي راخوشي کړل یو ډیر سپین ږیري سړي به راغلو هغه به ورته لاسونه خوزول سره به بلي خواته ولاړ اوکله به چي بمبارد نه وو نو داسړي به هم نه لیدل کیده .

---

دا د۱۳۶۲کال دسرطان دمیاشتي واقعه ده چي دي مجاهدني ماته حکایت کړیدي .

## دیوماشوم دسرو ویښتان په مرمیو لګیدل

ګل ولي وائي چي په ۱۳۵۹/۹/۱۵ نیټه دهزارناو اوشینوارو له لاري دخپلي کورني سره په هجرت روان ووم دلاري په اوږدو کي ددښمن له قوا اوکمین سره مخ شوم په مونږ ئي فیرونه وکړل مونږ په یوي ویالي کي ځانونه واچول لیکن کوچني زوي مي له مونږ څخه وړاندي خواته پاته شو ،

دتوپکو اوتوپونو فیرونو جریان درلوده ، کله چي فیرونه ارام شول مونږ
ورغلو چي زوي خو به مي اوس لگیدلي وي ، په خاوروکي دوه انچه پټ وو
کله مو چي رااوچت کړ دسرویښتان ئي توي شوي اوپه مرمیو لگیدلي وو
لکین دخداي «ج» په فضل نور هیڅ نه وو زخمي .

---

گل ولي دمجاهدینو سرگروپ په قوم معروف خیل اودنوغلك اوسیدونکي دي

پاك الله «ج» چي په هر چادي رحمیدلي
هرمشکل کي دي هغــوته رسـیدلي
تابــه ســاتــي هرظالم اوله جابرنـه
ابراهیم «ع» ئي اورلمبوکي دي ســاتلی

## دیومریض روغیدل

یو نفر مجاهد محمد اکبر خان قصه کوي اووائي چي په ۱۳۶۱/۸/۱۰
نیته زمونږ دمنطقي دتخت په نوم یو ځاي ته هوائي ملیشااو قوا راغلي وه اوزه
سخت مریض ووم ، دري میاشتي مي مسلسلي تبي کولي نه مي اوږد منزل
کولي شو ، نه مي منهۍ وهلي شوي اونه مي سم خوراك کولي شو ،
مجاهدین ټول ولاړل دملیشي مخه ئي ونیوله اودهغوي مقابله ئي کوله ، زما
زړه هم وغوښتل چي باید ولاړشم په خداي «ج» مي توکل کړه ، حرکت مي
وکړ ، کوم نفر چي زما څخه مخکي روان شوي وو له هغو څخه مخکي شوم
بلکه له ډیر کسانو مخکي خپل منزل ته ورسیدم هلته موله دښمن سره ښه
جنگ وکړ ، قوا بیرته وتښتیدله ، مونږ هم چي کله راستانه شو بیخي بي

تکلیفه راورسیدم زما چي کومه تبه اومرض وو هغه راځخه بیخي ولاړ نه مي له دي وروسته بیا تبه لیدلي اونه راباندي څه مرض راغلي دي حتي چي له نن ورځي پوري زه دالله تعالي په فضل اوکرم مریض شوي نه یم اونه څه رنځور تیاراته پیدا شویده .

## دخبري بدلون

دکابل ولایت په پغمان کي یومولوي وو چي محمدي ګل نومیده اود جهاد په پیل کي ئي یوګروپ ترتیب کړي وو چي همیشه به ئي د کابل د ګوډاګي اوکمونست رژیم په ضد تبلیغات کول ، دکمونیزم له فلسفي اوکرغیړني مفکوري څخه ئي خلك خبرول ، تل به ئي دجهاد حکم کولو اومجاهدین به ئي تشو یقول چي ددي مولوي صاحب دي عمل دوخت ملحد دولت تربوزي راوستي وو ،یوه ډله ملاتما کسان دخادله خوا تربیه شول ډیري پیسي ورکړل شوي اووظیفه ورکول شوه چي مولوي صاحب ته ورشي ورته ووائي چي له دي کار څخه لاس واخلي ، دولت زور وردي تابه دستګیر کړي ، مونږ ستا شاګردان اونیك خواکسان یو تاته ددوستي له مخي راغلي یو ، له څو تړا نکونو سره دا ډله روانه شوه له مجاهد او مبارزمو لوي صاحب سره مخ شوه دي ملاتماډلي ورته وویل چي خپل نیك عمل ته دوام ورکړه له دي خبرو څخه لاس وانخلي ، دولت ډیر کمزوري دي ، ستامخه نشي نیولي ، ته په حقه روان ئي بلکه ، مونږ خاد تربیه کړي اوستا د دهوکي لپاره رالیږل شوي یو .

---

دمحمد یعقوببه « شرافت » له رادیوئي قصوڅخه اخیستل شوي .

## دمرمیو باران کې دمجاهدینو ژوندي ساتل

ددره نور علاقداري دښتن کلي څخه ملاپیر محمد وائي چې زمونږ منطقې ته دروسانو اوکمونستاو قوأ راغلي وه فقط دمنطقي یو قوملندان چې محمد علم نومیده له دري نفرو مجاهدینو سره مقابلي ته ورغی ، او ۲٤ ساعته ئي قوأ حصاره کړي وه اوسخته مقابله روانه وه نو زمونږ دکلي یو سپین ږیري چې حاجي مسعود خان نومیده خالي لاس دجنګ صحنې ته ورغي یوي پلنې تیزي باندي په لمانځه ودرید له هري خوا پرې دمرمیو باران جوړ شو لکین ده خداي «ج» ته په عذر او زاري لاسونه نیولي وو اوداللّه په فضل روغ رمټ راستون شو قوأ بیرته وتښتیدله .

## دکمونستانو له تانک څخه بیرغ راوړل

همدا ملاصاحب وائي چې دانقلاب په پیل کې زمونږ دمنطقې اوسیدونکو فیصله وکړه چې دبنیوي په ولسوالي به عملیات کوو حاجي کمراخان دجنګ مشر تعین شو هلته ورسیدو په لمتك نومي یوکلي کې ددښمن پوسته وه چې تانکونه پکې ولاړ وو اودیوه تانك لپاسه سور بیرغ ځړیده ، حاجي کمراخان چې شپږ ځامن ئي هم په دي جنګ کې شریك وو راوغوښتل اوورته ئي وویل چې همدا اوس دننګ اوغیرت صحنه ده ، تاسي په خپل دین ، وطن اوناموس غیرت وکړي تاسي کي به څوك وي چې دټانګ له سر څخه سور او کمونستي بیرغ راوړي یو زوي ئي اوچت شو چې زه ئي انشأ اللّه راوړم ، هغه ته ئي اجازه وکړه او وریسي ولاړ ، مونږ ورته کتل چې

ښکاره اوډاډ ه ور روان وو به تانك وخوت بيرغ ئي راخلاص كړو او بيرته په جرئت اوډاډه زړه له بيرغ سره راغي .

## دتلاشي په وخت كې توبه له ورلو عاجزي

يو نفر چي لعل مير نوميږي وائي چي دكامي په ولسواي كي مي كور وو هلته دګوډاګي رژيم دعسكروقوا له جلال آباد څخه دتلاشي لپاره راغلي وه ، زما په كوركي دوه ميله سلاح وه هغه مي دغنمو په پټي كي واچوله عسكر راغلل يو خوا اوبله خوا ګرځيدل يو نفر په غنمو ورګډ شو په غنموكي ئي توپك ومونډل اوهملته پري ودريد ، زه هم په يوه ګوښه كي ولاړووم كله چي تلاشي بلي خواته ولاړه نوهغه عسكر چي زما سلاح ني مونډلي وه ماته اواز وكړ چي دلته راشه زه ورغلم ماته ئي وويل دا سلاح ستاده ؟ ما زړه نازړه وويل چي بلي ! عسكر راته وويل چي سلاح دي واخله كورته ئي وړه ، ماوويل چي داڅنګه ؟ ده وويل چي كله مي سلاح وليدله په زړه مي ساړه ننوتل بدن مي تړل رپيده .دومره جرئت مي ته شو كولي چي سلاح ته لاس وروړم نوهمدلته ولاړ ووم تر څونور عسكررانشي اودا سلاح وانخلي نواوس چي تلاشي له دي ځايه ولاړه زه هم روانيږم اوته دي خپله سلاح كورته وړه .

## دشهيد په كفن دتوحيد كلمه

دزرغون ښارڅخه مجاهد عبدالجبار وائي چي په ١٩٨٦/٧/١٠م نيته مونږ دمحمدآغي په ولسوالي عمليات درلودل برخوردوه شو اوښه جنګ مووكړ ديوشمير فتوحاتو وروسته مونږته يونفر مجاهد چي دپغمان

اوسیلونکي ووېه شهادت ورسید مونږ هغه مرکز ته راوړهلته موکفن ورکې اوهدیري ته مو دښخولو لپاره انتقال کړ کله مو چې قبر ته ټیټولو نوله ماسره ډیر نفر ولاړ وو له زخمو نو ئي ویني بهیدلي وي اوپه کفن دوینو په ذریعه لیکل شوي وو چي ( لااله الا الله محمد رسول الله )

---

دشهید دکتور عبدالله «عزام» دلیکل شوي اثر عبر وبصائر بل جهاد څخه .

## دتږي په وخت کي واوره اوبلي اوریدل

مجاهد گل محمد وائي چي زمونږ کلي ته قوأ راغلي وه مونږ له سرخاب څخه دهغه ځاي یونږدي غره ته چي دسلطان صاحب غرنومیږي ولاړ وهلته دڅه وخت له تیریدووروسته داربو نشتوالي له کبله سخت تږي شو بزمونږ سره یو مولوي صاحب چي بزرگ نومیده هم موجود وو مونږ او هغه خداي «ج» ته سوال وکړ چي یا الله «ج» ته زمونږ په حال ښه خبر ئي له تږي هلاکیږو ته مو چاره وکړي ، هغه وو چي وریځه راغله دومره واوره اوبلي وه شوه چي زمونږ ټولو پري تنده ماته اوسیراب شو پداسي حال کي چي دا موسم هیڅکله هم دواوري نه وو .

## دطعــــام ویر یدل

دمحمد آغي له ولسوالي څخه انجنیر صفي الله «کرنگ » وائي چي په عادي حالاتوکي به زمونږ دکوردخوراکي لپاره ۲٤٥ کیلوگرامه غنموردو میاشتو پوري کفایت اودوام کولو لیکن داچي زمونږ کور دلاري تر څنگ وو

اوجهاد په شروع کي په ډلي ډلي مجاهدين زمونږ حجري ته راتلل هلته به ئي شپه تيروله اوودي په موروته راوړله چي همدي غنمو تر شپږو مياشتو پوري دوام وکړ ، اوکله مو چي شپږ مياشتي وروسته هجرت کولونو ۸۵ کيلوګرامه غنم راځخه ژغات هم شول چي هغه مو خپل يو ګاونډي ته پريښودل .

## له اتلسو مياشتو وروسته دشهداوواجساد

حاجي سردار ، معلم توراومعلم داوددواني چي دروسانو دګوډاګي رژيم دطيارو بمبارد له کبله په کتب خيلو کي څو نفره شهيدان شول اودلوګر ولايت دپل قندهاري ترځنګ موږه يوي هديري کي ښخ کړل اتلس مياشتي وروسته په ۱۹۸٦/۸/۱ نيته دجمعي په ورځ دملحد دولت طيارو بيا په همدي هديره بمبارد وکړ چي ددري نفر وشهيدانو هريو ، مبارك شاه ، حاجي محمد اومبين جسدونه دبمونو په ذريعه له قبرونو راووتل ، مونږ ورغلو دهمدي شهيدانو له زخمونو څخه ويني څڅيدلي چي دعطرو اوعنبرو بوبونه ئي کول .

چې دلوګر ولايت دکتب خيلو ۳۰نفرو اوسيدونکو دا واقعه پخپلو سترګوليدلي اوبري ګواهان دي .

---

مولوي صاحب سيد حکيم هم دهمدي واقعي تصديق کړيدي .

* * *

## په خوب کې دمرض علاج

یوه زنانه ماته دخپل مرض شکایت په ۱۳۶۹/۳/۸ نیټه دارنګه کوي چي دخولي خوندمي خراب وي ، ستوني مي هروخت تر یخ وي ، دخولي لاړي ( لعاب )مي هم له ډیر تریخوالي نشم بلع کولي که څه دوالازم ګڼي راتي کړه ، ماهم پري دصفرا مرض ګمان وکړ ماوویل چي زه به درته دوا تهیه کړم په دوهمه ورځ ئي بیا ماته وویل چي زما مرض خودالله «ج» په فضل ښه شو اودواته مي حاجت پاته نشو ، ماوویل چي داڅنګه ؟ هغې وویل چي په خوب کي مي فلانۍ شهیده بی بي ولیده هغې ته مي دخپل مرض شکایت وکړ هغې ماته دنداسه راکړه ماپه خولي کي اوپه شونډو او غاښونو کي ووهله ، نو کله چي سهار له خوبه پاڅېدم دخولي خوند مي ډېر برابر اوروغ رمټ وو چي له هغې وروسته مي بیا هغه شکایت نه دي پیدا شوي .

--------------------------

دغه شهید ه بي بي دخاد داجنټانو له خوادخپل خاوند سره په داسي حال کي په شهادت رسیدلي چي دخپل خاوند څخه ئي دفاع کوله اودالب الدین لور ده .

## سختې ګرمي کي تږي ماتیدل

فضل مولا« لتون » دخپل یونټوډي دوست سید جلال چي دواقعي لیدونکي دي په حواله واتي چي سید جلال دخپلو شپږو نفرو ملګروسره په۱۳۵۹ کال دسرطان په میاشت کي دننګرهار ولایت دکامي ولسوالي دنرتنګي دغره دشوي په ناوکي روان وو ډېره سخته ګرمي وه اوله ګرمي څخه

پري سخته تېري راغله، سيد جلال وائي چي له ډېري ګرمي اوډيري تږي څخه نژدې وو چي جل موووهي ، ضعف وکړ و اوهلاله شو زما مجاهد ملګري وارخطا شو نورموږ قدم منزل هم نشو کولي ، ماخپلو ملګروته وويل چي راځئ دالله «ج» په دربارکي دعجز اوخلوص لاسونه په عذر اوزاري اوچت کړو ، هغه وو چي خداي «ج» ته موسوال وکړ چي يا الله«ج» زموږ په حال سنه خبرتي ستا درحم اميدواريو ، په دي کي يو ه توره وريځ راغله اويخ باد اوشمال ورسره وو زموږ ستړيا ورکه شوه اوتږي والي هم راڅخه ولاړخپل منزل ته مودوام ورکړ، بلاخره اوږو ته ورسيدو هلته له رسيدو سره سم وريځ ورکه شوه هغه باد اوشمال چي لګيده هغه هم بندشو ، موږ اوبه وڅښلي ليکن هغه خوند، مزه اوراحت چي موږ ته له دوهاکولو وروسته ورسيد ، داوبوله پيدا کولو وروسته مونه هغه خوند وو، ليد اونه هغه مزه اوراحت بلکه هغه له دي څخه خوښنده دارام اوراحت شيبي وې .

---

فضل مولا دحزب اسلامي دارشاد اوفرهنګ دنشرياتو دآمريت غړي،ښه اديب ، ليکوال اوروان شاعر دي .

## دمجاهدينو زيادت

لېون صاحب وائي چي دانقلاب په شروع کي موږ ۳۳ نفره مجاهدين دکامي ولسوالي ته روان وو داکتر برات الله هم راسره ملګري وو چي دسور کو په واګ کي راباندي شپه راغله يوڅه مزل موچي وکړ ډيره تياره وه لار راڅخه ورکه شوه يوه خوا اوبله خوا ډيروګرځېدو ليکن لار موونه موندله

ناچاره شوچې هلته سرونه ولګوواوسهار وختي چي رڼا راوختله حرکت وکړو پدي توګه مونږ شپه تیره کړه سهار وختي دهغه ځاي ملك راغي له داکتر برات الله سره ئي پیژندل هغه ته ئي وویل تاسي څو نفره مجاهدین یاست هغه ورته وویل چي بس کافي اندازه یو هغه ملك ورته وویل چي تاسي بیګادوه ځلي ځماله کور څخه تاوراتاوشوي اوماپه هره دفعه وشمیرلي چي هر حل به ستاسي شمیر له یوسلوشلو (۱۲۰) نفر وڅخه نه زیاتیده بلکه مادوه واري وشمیرلي اوهر واربه ستاسي شمیر پوره (۱۲۰) نفره وو ، دي ملك دا بحث له داکتر برات الله سره کولو اومونږ ورته غوږنیسي وو .

---

داکتر برات الله دننګرهار ولایت دکامي دسنګر سراي اوسیدونکي دي زما ډیر نژدي اوصمیمي دوست اوملګري وو چي اوس دشهادت عالي مقام ته رسیدلي دي ، یادئي ښه اوروح ئي تازه ( مؤلف )

## دد ښمن کمین اودغر څه راتلل

په ۱۳۷۰ کال دحمل په میاشت کي دچکري له جلغوزي څخه دلښکرایشاریو شمیرمجاهدین لوګر ته روان وو اوکچرئي هم په څه وسایلو اومهماتو بارکړي وو اوهلته دنورو مجاهدینو امداد ته ورتلل دلاري په اوږدو کي ورته دملحد رژیم عسکرو کمین نیولي وو کله چي مجاهدین کمین ته ورنژدي شول له غره څخه غرڅه راغلل مجاهدینو ولیدل په غرڅه وو ئي فیرونه وکړل په کمین کي ناست دښمنان وار خطا شول چي مونږ ئي لیدلي یو هغوي هم بي موقع وزي اوفیرونه وکړل نو مجاهدین پوه شول چي ملحدینو

پلرونواوخوږو زامنو په جدائی کی له غم اودرد څخه ډك ژوند تیروی دغه کتاب ترتیب اولیکل شو .

٢- مازیار ایستلی چی ددی کتاب محتویات له داسی چاڅخه راجمعه اواخلم چی نیك ، صالح ، مجاهد اوعالم دین شخص وی ، دواقعاتو دجمعه کولو په وخت کی می دهغه په راوی داشرط ایښی چی واقعه به یا تالیدلی وی اویادی دبل اعتباری شخص څخه اوریدلی وی چی هغوی هم له خپله اړخه دواقعی دصحت پوره ډاډ راکړیدی .

٣- دواقعاتو دبیان به سریا په پای کی می دیو خط دلاندی دواقعی محل ، نیتہ اودراوی مکمل شهرت لیکلی دی چی دضرورت په وخت کی ورسره تماس ونیول شی .

٤- مخکی له دی چی دکتاب محتویات راجمعه اوترتیب کړم له یو شمیر جیدو علماء کرامو سره په تماس شوم له هغوی څخه می هدایت اومشوره واخیسته دکتاب له ترتیب وروسته دالیکل شوی اثر دهغوی له نظر څخه تیراوخپل تقریظات ئی پری ولیکل چی په پیل کی به تاسی لوستلی وی .

٥- دغه واقعات دټول افغانستانه څخه نه بلکه له هغو سیمو څخه راجمعه شوی چی زه ورغلی یم اویا دواقعی له راوی سره ئی مخ شوی یم ممکن له دی ډیر مهم اوبه زړه پوری نور واقعات به هم وی چی ماته ئی دا وریدلو افتخار تراوسه نه دی حاصل شوی انشاء الله بل ځل چاپولو کی به له دی زیات نور واقعات چی ماته راورسیږی ورسره ضمیمه شی .

٦- په دی واقعاتو کی می یو څو واقعات دشهید دکتور عبدالله «عزام» په عربی ژبه لیکل شوی اثر ( عبروبصائرللجهاد ) څخه په پښتو راړولی

راته کمین نیولي دي نو دوي هم مقابلي ډزي پري وکړي اودښمنان وتښتیدل چي پدي توګه الله تعالي ددښمنانو پلان شنډ اوناکام کړل .

---

دواقعي بیان داستاذ جعفر ورورچي دمحمداغي اوسیدونکي دي کړیدي.

## په ډیري واوري کي دیو مجاهد همت

مجاهد عبدالمتین دخپلو سترګولیدلي حال داسي بیانوي چي په ۱۳۶۹/۱۱/۳ نیټه مونږاته نفره مجاهدین دچکري جلغوزي ته چي هلته زمونږ مرکز وو روان وو له سرخاب څخه موحرکت وکړ خو واوري بیخي ډیري وي زمونږ څخه لاره ورکه شوه اودیو مجاهد پښي هم دواوري په ذریعه سوځیدلي اوډیري تناکي شوي وي مونږ باندي شپه راغله هلته په یوځاي کي موښه کوټي اوکنډروونه پیدا کړل شپه موپکي تیره کړه چي سهارشو نودلته تازه خلك تللي اوراغلي وو مونږخوسحاله شو چي دازمونږدمرکز مجاهدین تللي راغلي دي خو چي بیرون وو تلو زمونږ خواته په لنډه فاصله کي عسکر ګرځیدل اوددي خواته ډهغوي پوستي وي نژدي وو چي مونږ ټول ونیسي له هغه ځاي مو حرکت وکړ هغه مجاهد چي پښي ئي سوي وي هغه مو په شاکړیوي کندي ته ټیټ شو لکین دواري دډیرښت له امله مونږ هغه مجاهد چي پښي ئي سوځیدلي وي یو قدم هم وړاندي نشو وړلي نژدي وو چي راڅخه پاته شي پدي کي ټول دقبلي په لور ودریدو دالله په دربارکي مولاسونه پورته کړل چي ددي مجاهد چاره وکړي پدي کي همدغه مجاهد چي مخکي نه شو تلي وویل چي انشاالله زما پښو کي حرکت پیدا شو په تګ

ئي پيل وکړ حتي زمونږ څخه به مخکي مخکي روان وو په داسي حال کي چي په پښو ئي تناکي اوبلي ولاړي وي ليکن خداي «ج» دومره همت ورکړ چي زمونږ څخه به ئي مخکي منډي وهلي ترڅو خپل مرکز ته ورسيدو .

---

هغه مجاهد چي پښي ئي واوري سوځولي وي جميل گل نوميږي .

## بهترين بدل

يوه ورځ په ۱۳۷۰/۲/۲۲ نيټه له محترم حکمتيار صاحب څخه دارکانو په سيمنار کي يو وورور پوښتنه وکړه  چي دحزب اسلامي مالي امکانات له کومو مراجعو څخه پوره کيږي ؟

حکمتيار صاحب په ډيره حوصله ددي وورور دپوښتني په ځواب کي وويل چي تاسي ټولووروټو ته اطمينان درکوم چي له حزب اسلامي  سره ټول کومکونه داسلامي ټولنو اواسلامي دولتونو له خوا څه په رسمي توگه اوڅه په شخصي توگه صورت نيسي دغه ټول کومکونه چي مونږ ته رسيږي دابي قيده ، بي شرطه  اودهرراز شخصي اغراضو څخه خالي دي ، دغه کومکونه مونږته د اسلامي ووروولي اواسلامي مسئوليت په بنا رسيږي هغه خلك په دي ځان  مکلف گڼي چي زمونږيه  جهاد کي ځان شامل کړي کله چي مونږ دهغوي کومکونه قبلوو دا  افتخار گڼي ، په صراحت سره ووروټو ته بايد اعلان کړم چي مونږ له چاڅخه مشروط کومك نه قبول کړيدي اونه به ئي قبول کړو ، دموضوع په ارتباط تاسي ته يو مثال وايم : ماته يو وخت ديو چاله خوا ښه ډير کومك وړاندي شو لکين معمولي شان شرط ورسره وو په داسي حال کي

چي مونږ دي کومك ته ښه ډېر ضرورت درلوده ولي مونږ دغه کومك مستردکړ ، مونږ داله جهاد سره جفا وګڼله اودحزب داصولو اوپاليسي خلاف عمل مو وګڼلو دهغه کومکونه مو رد کړل او قبول مونکړل ، ولي خداي «ج» بهترين بدل ورکوونکي ، له هر چاپېره رزق ورکوونکي دي ، په همدې ورځ چي کله له کار څخه فارغيږم خپل کورته ځم هلته دجهاد يو دوست راځي اومونږ ته هماغه مقدار کومك راوړي چي مونږ له هغه بل چاڅخه رد کړي وو ، دغه دوست مونږ ته په ډېر وياړ سره کومك وراندي کوي پدې فخر کوي ، وياړ کوي اوزمونږ احسان په ځان مني چي تاسي زمونږ عطيه قبوله کړه له ډيرې خوښي ني په سترګوکي دخوښحالي اوښکي راځي ، چي تاسي زما عطيه قبوله اوپه جهاد کي ني مصرفوي .

نوورورو تاسي له دي ناحيي مطمئن اوسي ، واوه اوسي تاسي دخداي «ج» په لاره کي هجرت کړي ، محمد رسول اللّه«ص» په پل موقدم ايښي نو همدااللّه«ج» به ستاسي ټول مشکلات حل کوي .

بس همدايو الله دځان لپاره کافي وګڼي ، له دي ناحيي هيڅ تشويش مه لري .

---

دارکانو سيمنار دسوالونو اوځوابونو برخه .

## دمهاجرينو ازار

په پيښور کي دافغان مهاجرينو کمپ چي په کوهاټ روډ موقيعت لري دکمپ يوه برخه ديو انصاروروور ځمکي ته ورځيرمه دهغه دشارې ځمکي په يوي برخي کي پرته وه دغه انصار ورور ډير سرمايه دار اوډيري شتمني

خاوند وو ، سبه ډير جايداد ځمكي اوسرايونه ئي درلودل ، په خپلو جايداد ونو ئي ستركي ډكي نه شوي دغو دكمپ يوي برخي مهاجرينو ته ئي وويل چي دده له ځمكي ووزي په داسي حال كي چي دي بيچاره وو ډيره خواري كړي وه ، هلته ئي پكي كوورونه اوكوټي جوړي كړي وي ليكن دځمكي مالك په باربار داتقاضا كوله كه څه هم خلك ئي كورته ورغله مشران ، ملايان اوسپين ږيري عذرته ورغلل خوده ونه منله اوپه خپلي خبرى ئي ټينگار كولو ، بلاخره دغه مهاجرين مجبور شول په ډيره خواشيني اوويرسره له دي ځمكي ووتل ددي كمپ په جماعت كي ټولو خلكو سوال وكړ چي يا الله دي سړي له مونږ سره ډير ظلم وكړته دده دظلم اوغرور ذوال وركونكي ئي ، تاسي باور وكړي چي ډيره كمه موده لانه وه وتلي چي دا سړي دډول ډول تكاليفو سره مخ شو، مالونه اوتجارت ئي ضبط شو ، ځمكو باندي ئي قرضداروقبضي ولكولي ، سرايونه اوتعميرونه ورځخه پورووړونيول لنډه دا چي دا سړي خوار اوزار شو له قرضدارانو اوپوروړويه پټ گرځيده چي همدا اوس هم په ډول ډول كړاونواوجنجالونو كي اخته دي .

---

دا هرڅه دمؤلف دستركوليدلي حال دي له نورو وضاحت څخه معذرت غوارم .

## دشهيدله وينو داورلمبي

دلوگر ولايت دتيري له التمور څخه دملالاجبروړور چي اوس دټل په سره پل كي اوسيږي دخپلو ستركو ليدلي حال داسي بيانوي چي دخوست په وروستيو عملياتو كي زمونږ يومجاهد وروړ چي زعفران نوميده په شهادت

ورسید کله مو چي له هغه ځایه نقل مکان ورکولو نوله زخمونو ئي غوټه غوټه ويني بهيدلي اوپه ځمکه ډنډو دريدي ، په دريمه ورځ مونږ دهمدي لاري څخه تيريدو کله چي دشهيد دشهادت ځای ته ورسيدو نوشپه وه اودشهيد ويني همغسي ډنډ ولاړي وي له هغو څخه غوټه لمبه پورته شوه په هوا کي شغلي شغلي اوتيت پاشان شوه ، دري ځلور دفعي دا واقعه تکرار شوه ، چي له ډيري مودي به کله ناکله دا واقعه تکرار يدله اوډير وکسانو به ليدله .

## دمجاهدينو سترېا اودشهيد خولي

مولوي صاحب گلدار چي دمولوي صاحب خالص داسلامي حزب قوماندان دي دخپلو سترګو ليدلي واقعه داسي بيانوي چي په ۱۳٦٧ کال زمونږ منطقي ته دروسانو اوداخلي کمونستانو قوأراغلي وه چي دهغوي سره دبرخورد په نتيجه کي يو نفر مجاهد چي محمد حسن نوميده په شهادت ورسيد اوشپږ ورځي هملته پاته وو په شپږمه ورځ مونږ ورغلو البته دي ډير لري ځاي کي پروت وو مونږ چي هغه ته وروړسيدلو ډير ستړي اوخولي وو چي شهيد مووکتلو دهغه په مخ اوتنډه هم خولي پرتي وي ، بيا مونږ هغه راواخيست او غوښتل مو چي خپلي پلرني هديري ته ئي دښخو لو لپاره نقل کړو دلاري په اوږدو کي ځلور پنځه ځلي مونږ دمه کيښوده چي هرځل به دشهيد په مخ اوتندي خولي راغلي وي کله چي به زمونږ دمه جوړه شوه اوخولي به مو وچي شوي نو دشهيد خولي به هم وچي شوي اوکله به چي مونږ ستړي اوخولي شو نو شهيد به هم خولي خولي شو اودده له خولو څخه به ډيرښه معطر بوي پورته کيده .

## کوڼ اوړوند روغیدل

دهرات له ولایت څخه قاضي صاحب عبدالصبور دارنګه حکایت کوي چي دهمدي ولایت دګذره په ولسوالي داسیاب چه په کلي کي یو سړي وو چي عبدالسبحان نومیده دده یوه قلعه وه اودقلعه په مخ کي ئي یوه چوتره وه چي هر وخت به پدي چوتري کښیناسته داسړي په غوږ ونو کوڼ اوپه سترګو معیوب وو دده کور ددښمن دپوستو ترڅنګ وو یوه ورځ ددښمن مرمي راغلي اودا سړي پري په ښي شقیقه ولګید اوپه چپه شقیقه ئي مرمي ووتله سړي بیهوشه شو یو نفر داکتر چي نوراحمد نومیده دتداوي لپاره راوستل شو هغه وویل چي داخو دکوماپه حالت کي دي زه ئي تداوي نه شم کولي اونه دتداوي وړي دي ، وارثان اودکلي خلك ئي دتکفین اوتجهیز دترتیباتو لپاره راجمعه شول ، کفن اونورسامان ئي ورته برابر کړ لکین ٢٤ ساعته وروسته داسړي په حرکت راغي ، لاس اوپښي ئي وخوزولي ، په دریمه اوڅلورمه ورځ ئي په خوراك پیل وکړ ، بلاخره له لږ لږ تداوي وروسته وارپه وار جوړیده اوشپږمه میاشت وروسته په مکمله توګه روغ جوړ شو ، اوخلکو به ویل چي اوس خبري اوري او په سترګو ویني نوزه ئي دملاقات لپاره ورغلم کله مي چي ولیدلو نوزما ټولي خبري ئي اوریدلي اوپه سترګو هم بینا شوي وو اودیر ښه لیدل ئي کول حال دا چي مامخکي هم لیدلي وو نه ئي اوریدل کولي شول اونه ئي څه لیدلي شول .

---

قاضي صاحب عبدالصبوراوس په خیبر بازار کي دیوي کتابخاني مالك دي چي کابل کتابخانه نومیږي اوداسلامي انقلاب لپاره ئي ډیر ښکلي کتابونه په بیلو بیلو برخو کي نشر اوخپاره کړیدي .

## دکمونستي عسکرو بې عقلي

دلوګر ولايت له موسهي ځخه حاجي عبدالقدوس وائي چي يوه ورځ له ماپسي دملحد دولت له خوا دنيولو اودستګيرولو تلاشي راغله زه ترې په يوباغ کي پټ شوم هلته هم تلاشي راغله له ماپسي يو عسکر راغي تذکره ئې راځخه وغوښتله ماتذکره ورکړه هغه ئې خپل صاحب منصب ته ورووړه بيرته ئې راکړه ماته ئې وويل چي حاجي عبدالقدوس به چيرته وي ماورته وويل همدلته شاوخوا به وي هغوي وويل چي مونږ ته ئې ځاي وښايه ماورته وويل زه ئې درته نشم ښودلي همدا بحث اوجنجال وو چي تلاشي بلې خواته ولاړه اوزه ئې دتذکري اودعکس باووجود ونه پيژندلم .

## د شهيد په خدمت کي معاوضه اوبهترين بدل

حاجي ګل محمد وائي دجګدلي دځند يخلو يو مجاهد شهيد شوي وو دشپې ئې ترې منګل ته راوړ، هلته ورسره کرايه نه وه کورني په پيښور کي وو زه ولاړم دشپې مي ورته له ګوبزني موټر راوست او ٩٠٠ روپې کرايه مي له جيب ځخه ورکړه ځو ورځي وروسته يو قوماندان راغي اويوميل توپك ئې راته په داسي شکل بخشش راکړو چي زما هيڅ طمعه اواميد ورته نه کيده ماته ئې وويل چي زه خبريږم ته دمجاهدينو خدمت کوي نودخداي «ج» په رضا دا زه تاته بخشش کوم .

---

حاجي ګل محمد ډيو قوم ملك دي دحرکت دتنظيم غړي اوله ټولو مجاهدينو سره به ئې هرډول مالي اوځاني کومك اومرسته کوله .

## دشهـــيد اواز

دپکتیا ولایت په ځمکنیو کې انجنرمحمد هاشم خپله لیدلې واقعه دارنګه بیانوې چې زه هلته تللې ووم اوددښمن دمین په ذریعه یو نفر مجاهد والوت دامجاهد یوازې وو اودمین دشدت له کبله له سرك څخه دهغه په خواکې بهیدونکې سیند ته ګذارشوې وو کله چې له واقعې څخه خلك خبر شول ورپسې راغلل هغه ئې په اوبو کې ډیرولټهولو خوپیدانه شو له ډیر تلاش وروسته فقط دهغه یوه پښه وموندل شوه خلکو داسې فکر وکړ چې اندام اندام اوټوټې ټوټې شوې به وې نوځکه هغه پیدا نه شو ډیرې ورځې وروسته څو نفره ماشومان راغلل مونږ ته ئې وویل چې له سیندڅخه اوازونه پورته کیږي

نودې خبرې مونږ حیران کړو څو نفره له دې ماشومانو سره دسیند غاړې ته روان شو مونږ ورته وویل چې له کوم ځای څخه اوازونه راتلل هغوې هغه ځای ته بوتلو چې ترڅنګ ئې مین انفجارکړې وو اوشهید اوبوته لویدلې وو یونفر اوبو ته ورګډ شو هغه وویل چې دلته خو څوك پروت دې هغه موله اوبو رابهر کړو چې هماغه شهید وو په داسې حال کې چې دا ځای بار بار اوڅو دفعې لټول شوې وو کله مو چې شهید وچې ځمکې ته راوکیښ نوډیرورځو وروسته ئې بدن هیڅ اومعمولې غوندې تغیر هم نه وکړې صرف یوه پښه ئې دمین به ذریعه قطع شوې وه بل زخم هیڅ پرې نه معلومیده خوپه تندې ئې دونې یوه پانه نښتې وه کله مو چې دا پانه لرې کړه نودمین دپارچې ژورزخم وو اووینو ورڅخه جریان وکړله ډیره وخته وینې ترې بهیدلې

## دهديري ترخنګ دشپې له خوادشهيدانو صحبت

يونفر چې لاجمير نوميږي ماته خپل اوريدلي حکايت دارنګ کوي چې دپيښور دماشوپه ميره کې دمهاجرينو دهديري ترخنګ دکانو دميده کولو يو ماشين لګيدلي وو اوددي ماشين ترخنګ دمزدورانو کوروته وو په دوي کې يو مزدور ماته وويل چې يوه شپه له کوره بيرون ووتلم ددي هديري ترخنګ دبيري يوه ونه وه اوله دي ونې لاندي ډله کسان څوانان اوماشومان ګرځيدل راګرځيدل خبري ئې کولي چې زه ورغلم هر څه غائيب شو ، په دوهمه شپه بيا همدا واقعه ماوليدله خو چې هلته ورغلم هيڅوك به هم نه وو ، په دريمه شپه مي بيا دامعامله وليدله خو داځل مي خپل ګاونډيان هم خبر کړل هغوي هم داهرڅه وليدل خو کله چې مونږ ټول ورغلو بيا هيڅوك نه وو زمونږ په زړونو ساړه ننوتل بلاخره دموضوع دحقيقت لپاره يو مولوي صاحب ته ورغلوله هغه څخه موپيدي باب پوښتنه وکړه هغه وويل چون دا دمهاجرينو هديره ده اوپدي کي ډير شهيدان ښخ شويدي نو شهيدانو په ژوند ون کې خوشك نه دي پکار .



اودلته ليکلي دي .

۷- که په کتاب کی ستاسی له نظره کومه ادبی غلطی اوياکومه محاله واقعه چی داسلامی شريعت سره منافات ولری تيره شی هغه به يازماقلمی سهوه اويادواقعی دراوی نيمگړتيا محسوبوی داېه قصدی عمل نه گڼی په اصلاح کی به ئی له ماسره کلکه همکاری کوی چی بل ځل چاپولوکی ئی نيمگړتيا پوره شی .

۸- خدای «ج» دی وکړی چی زما دغه ليکنه دمختلفو علمأ کرامو ترمنځ متنازع ، واقع نشی اوبيا هم دکوم شك اوشبهی په صورت کی به دکتاب دپيل دعلماء کراموتبصرو اوتقريظاتو ته نظر راگرځوی اميد دی دشك په لری کولو کی به درسره کومك وکړی .

۹-زه دمحترمولوستونکوڅخه ددی خبری تقاضاکوم چی دغه واقعات بيابيا ولولی اودزړه په تل کی ځای ورکړی اميد دی چی دجهاد اوشهادت جذبی موژوندی کړی .

۱۰- دهری واقعی په پای کی بايد دوالله اعلم ، لفظ ويل له ياده ونباسی دايولازمی شرط وگڼی .

والسلام

لوگر - ارزه ، ببر ، دآحد قرارگاه ( ديدار «احمدزی » )

۱۸ . ۱۰ . ۱۳٦۹هـ ش

***

## دزخمونو قدرتی رغونه

دصوابی له کمپ څخه یو نفر مجاهد محمد اجان قصه کوی چی ماته یومجاهد چی کورئی زما دکورترڅنگ وو وویل دکندز ولایت په یوی سیمی کی دنورو مجاهدینو سره یوځای په هغه منطقی کی ددښمن دیوی پرتی پوستی د ټکولو لپاره ولاړو په پوستی موتعرض وکړ سښه ډیر دښمنان موهلاك کړل په پای کی له مونږ څخه هم یو نفر مجاهد په پښښی ولگید اوشدید زخمی شو زمونږ سره مرمی هم خلاصی شوی ،لمر راوخوت اوسهار شو مونر غوښتل چی زخمی مجاهد واخلو اوخپلو مرکزونو ته عقب نشینی وکړو؛ خو څه گورو چی ددښمن یوه لویه قواء چی ټانگونو اوطیارو څخه مشتمله وه زمونر دنیولو لپاره راغله اوغوښتل ئی مونږه محاصره کړی مونږ چی وضعه ولیده نودزخمی دوړلوتوان موونه لیده زخمی راڅخه پاتی شو اومونږ ورڅخه حرکت وکړ په کوم ځای کی چی راڅخه زخمی شوی مجاهد پاتی وو هلته عسکر اوملحدین ورسیدل مونږ داسی فکر وکړ چی یاخوبه ئی شهید کړی وی اویابه ئی ژوندی نیولی وی بس ډیر خواشینی اوغمجن خپل مرکزته ورسیدو شپه موتیره کړه سهار دلمانځه روسته گورو چی زخمی شوی مجاهد راروان دی اوزمونر مرکزته راورسید وائی مونږ ورڅخه پوښتنه وکړه چی ځنگه راخلاص شوی اودلته څنگه راغلی ؟ ته خوزخمی وی تلل دی نه شو کولی په پښه زخمی وی په کومه وسیله راغلی ؟

هغه وویل چی کله تاسی راڅخه ولاړی اوقوا راورسیده نوما په راښکلو

چی په ټاکلی نیټه ورغلم نوراته ئی وویل چی که څه هم سرتراخره می نه دی لوستی خودمره وایم چی اثر دی ډیر ښه دی بله هفته راشه انشاألله مابه مکمل لوستلی وی خپل نظربه بیا لیکلی توګی باندی څرګند کړم اوکه داملاله لوری څه اصلاح ته ضرورت وی نوهم به ئی وکړم .

چی په دی کی دوه هفتی نوری هم تیری شوی په اخر کی می پیدا کړ نویو څه اصلاحات ئی پکی داملا اوترتیب له مخی راوستی وو اودکتاب نوم چی ماورته « دجهاد په دوران کی دافغانی شهیدانو اومجاهدینو کرامات » نوم ورکړی وو هم مشوره راکول شوه چی بهتره به داوی « دافغانی جهاد خارق العاده پیښی » په نوم ونومول شی ما هم ددی ورورمشوره قبوله اوخپل نظر ئی دارنګه ولیکه :

محترما! دورورډاکتر دیدار خان لیکلی اثر « دافغانی مجاهدینو اوشهیدانو کرامات » می ولوستل خوراپه زړه پوری مطالب پکی راټول شویدی ، چاپ اونشر ئی زمونږ دمجاهدپالونکی ملت لپاره ډیر ګټور دی .

فضل مولا« لټون »

له دی هرڅه وروسته یوڅه ډاډ راته پیدا شو نوبیا ددی اداری ریاست ته ورغلم هلته چی ددی ریاست،معاون جریرصاحب ناست وو نوهغه داهرڅه ولیدل وروسته ئی راته وویل چی زه به دامسئله دارشاد اوفرهنګ په شوری کی مطرح کړم ترڅو دچاپ حکم ورکړی ، خوزیاته ئی کړه که زړه نه تنګوی مونږ ته دچاپ لپاره ډیر کتابونه دنوبت لپاره ایښی دی ستااثر به هم دنوبت لپاره کیږدو .

ماپه هماغه ځای کی له ځان سره دوهم تصمیم ونیولو چی یاره راځه داخل

## واذقال ربك للملائكة انى جاعل فى الارض خليفة

ټودا واضيح دليل ده دانسان دارزښت اوحثيت چې خداى «ج» مقربې پرښتې په دي ماموركړې چې د ادم عليه السلام احترام وكړي اوداحترام سجده ورته وكړې ټولو پرښتو دخداى «ج»دامر مطابق دادم عليه السلام تعظيم وكړ ، يوازې ابليس سجده ونكړه اودانسان په مقابل كې ئې دښمنانه دريځ غوره كړ ، اودانسان درجې ته قايل نه شو نو اخردده سرنوشت څه شو؟

نودهغه دسرنوښت په باب قرانكريم داسې يادونه كوي :

فاخرج منها فانك رجيم وان عليك لعنتي الى يوم الدين .

خداى «ج» ورته وويل دباندې وو ځه ، له جنت څخه بيرون شه ، په تحقيق چې رټل شوى ئې اودقيامت تر ورځې پورې زما لعنت په تاباندې دې دادې په روحانې عالم كې دانسان منزلت اوارزښت امّاپه دې پراخو كائناتو كې دانسان ارزښت اوحثيت دادې چې ټول كاينات هغه ته مسخّر ، ټول دده دحال په سمون اوګټه تماميرې لكه څنګه چې الله تعالى فرمائې :

والله الذى خلق السموات والارض وانزل من السماء مأ فاخرج به من الثمرات رزقالكم وسخر لكم الفلك لتجرى فى البحر بامره وسخربكم الانهاروسخر لكم الشمس والقمر دائبين وسخر الكم اليل والنهار واتا كم من كل ماسألتموه وان تعدوا نعمة الله لا تحصوها .

ورته د شخصي چاپولو ملاوتړه نوهغه ته خومي څه ونه ويل فقط دا مي ورته وويل چي هسي نه دلته دکتابونو دلاندي نادرکه شي زه به ئي دشخصي چاپولو کوښښ وکړم اوکه ونه شوه بيا به مجبوراً دلته احوال ونيسو ، هغه هم زما خبره خوښه کړه په دې توګه له هغه ځای څخه راروان شوم .

خوداچي په دې شپوورځو کې دګرديز دعملياتو پروګرام وو نوزه هم دخپلو مجاهدينو ورونو سره دمقدس جهاد دفريضي دادا په نيت هلته ولاړم له ډير وخته پوري هلته په جهاد کې مصروف ووم کله چي پروګرام په ختميدوشونوزه هم راستون شوم ديو څوشپو ورځو دمي کولو وروسته په ۱۳۷۰/۹/۱۶نيټه مي بيا دچاپولو کار شروع اوپه شخصي توګه دچاپولو لپاره مي دکتاب کار مکمل کړ .

نو داور دکتاب دچاپولو لنډ جريان چي ستاسي په حضور کې عرض شو.

ديدار « احمدزی »

۱۳۷۰/۱۰/۲۰ هـ ش

---

## چي هرزلمی ئی مطالعه کړی سنګرته به ځی

په اسماني اومجردو روحاني موجوداتو کې انسان داسي يوه درجه اومنزله لري ،داسي مقام لري چي مقربو پرښتو ډيره هڅه وکړه چي دغه منصب ترلاسه کړي خو ورنکړې شوه ځکه هغه څوك چي خدای «ج» ددې منزلې اودرجې دځمکې په سردخدائي خلافت خدای «ج» غوره کړی وو هغه انسان وو ، لکه قرانکريم په دې ارتباط داسي ګواه دي :

ترجمه :

خدای «ج» هغه ذات دی چی اسمانونه اوځمکی ئې پیدا کړی اولپاسه ئې اوبه « باران » رابنکته اونازل کړل ، نودهغه په وسیله ئې ستاسی دروزی لپاره میوی راوایستلی ،اوستاسی لپاره ئې بیړی مسخّری کړی چی دهغه په امر سمندر او اوبو کی روانی شی او ستاسی لپاره ئې ویالی مسخّری کړی ، اولمر اوسپوږمی ئې ستاسی لپاره مسخّر کړه چی په یو دول اورنګه تګ اوراتګ کوی ، اوشپه او ورځ ئې ستاسی لپاره مسخّرکړې دی ، اوهر څه چی تاسی وغوښتل مادرکړل که چیری تاسی زما نعمتونه وشمیری شمار به ئې نکړای شی .

داور دمادی جهان په منځ کی دانسان منزلت ، نوهغه کوم شی دی چی انسان ته ئې دکائناتوپه منځ کی دالوړه مرتبه ورښلی ؟ په داسی حال کی چی له هغه څخه غټ جسمونه اولوی اجرام موجود دی ؟

دادهغی نفخی کاردی چی داللّه «ج» له روح څخه په انسان کی ورپوه شویدی ، اودهغه فیضی علم برکت ده چی خدای پاك ادم علیه السلام ته الهام کړی وو هغه علم چی دهغه په برکت ئې انسان دځمکی په مخ دخلافت وړوګرځاوه اوهغه ته ئې دا اهلیت ورکړ چی دامانت دادروند بار په غاړه واخلی هغه بار اوامانت چی له تکلیف اومسئولیت څخه عبارت دی ، لکه څنګه چی قرانکریم په یوه عجیب اوبدیع اسلوب سره بیان کړیدی :

انا عرضنا الا مانة علی السموات والرض والجبال

فابین ان یحملنها واشفقن منها وحملهاالانسان

ترجمه : مونږ اسمانونو ، ځمکی اوغرونو ته امانت وړاندی کړ ، هغوی

ونه مانه چی دغه امانت په غاړه واخلی اوله هغه څخه ویریدل ، اوهغه بیا انسان په غاړه واخیست .

همدغه فطری استعداد وو چی خدای پاك انسان ته دا وسه ورکړه ، له دی وروسته چی خدای پاك لاری ته برابر کړ اولارښوونه ئی ورته وکړه اودده له لاری څخه ئی ټول موانع اوخنډونه لری کړل چی خپل سرنوشت په خپله وټاکی لکه څنکه چی قرانکریم وائی :

بل الانسان علی نفسه بصیرة

بلکه خپله انسان په خپل نفس باندی بینا اورو‌ښانه حجت دی .

فمن شاء فلیؤمن ومن شاء فلیکفر

که چاغوښتی وی چی ایمان راوړی ایمان دی راوړی که څوك غواړی چی کافرشی نوکافر دی شی .

ولکن قدافلح من زکاها وقدخاب من دساها

بریالی شو هغه څوك چی نفس ئی له گناهونو نه سوچه کړ او ناکامه شو ، تباه شو هغه څوك چی خپل نفس ئی په گناهونو خچن کړ .

دابحث ډیر لوی دی خوخلاصه داده چی ټول اسلامی علماء او ائمه دانسان دی منزلی اودرجی ته اهمیت ورکوی اوانسان ته په فوق العاده اهمیت او حیثیت قایل دی .

فقهی ابوبکر بن عربی وائی خدای پاك له انسان څخه بل کوم ښه مخلوق نه دی بیدا کړی ، خدای پاك هغه ژوندی ، عالم ، پوه ، ویونکی ، اوریدونکی ، لیدونکی اوباحکمته تدبیر کونکی پیدا کړیدی ، نوکله چی انسان په خپل انسانیت پاتی شی اودبهائمو مقام ته خپل مقام ښکته نکړی

اودعزت مقام اومعيار خاص تقوى وګڼي ، خپل قول اوعمل، حرکت اوسکون ، دوستي اودښمني ، مبارزه اوفداکاري مالي وي اوکه جاني خاص دخداى«ج» درضا په خاطر اوداسلامي عقيدى په خاطر مربوط کړي ، نه دشهرت ، جاه طلبي اومقام پرستي په خاطر، نوداسي انسانان هم په ژوند کي دکراماتو خاوندان دي اوهم پس له مرګه په عالم برزخ کي دغه عزت له انسان څخه دمرګ په واسطه نه ذائله کيږي ځکه هر انسان چي له دنيا نه دخداى پاك په دوستي کي اخرت ته ولاړ نو هغه به په عالم برزخ کي هم دخداى پاك دوست وي ، دغه عزت به خداى «ج» نه ترينه اخلي ، بلکه مونږ په دي عقيده لرو چي کوم انسان په قبر کي دمنکر نکيرپه جواب کي کامياب شي نوهغه ته خداى پاك قبر پراخه کوي ، دقبر تياره په رڼائي بدليږي .... وغيره .

حتّى چي نبي کريم «ص» قبر ته دمؤمين انسان په حق کي دجنت باغچه ويلى ده ، داټول په دي ثبوت کوي چي انسان څخه کرامت اوعزت دمرګ پواسطه نه زائله کيږي .

دکرامت معنى داده چي يو متشرع ، متقي اوپرهيزګار شخص څخه داسي کارصادرشي چي له عادت څخه خلاف اوعقل ترينه قاصر وي ، چي دنبي په حق کي معجزه ، دولي په حق کي کرامت اودفاسق په حق کي سحر اوجادوګڼل کيږي ، چي دابحث ډيرلوى دي صرف دمدعى داثبات په خاطر په يويو مثال کفايت کوو :

کرامت دژوند يو په حق کي :

دپيغمبر عليه السلام دوه تنه اصحاب چي ديو نوم اسيد بن حفير«رض» اودبل نوم عباد بن بشير «رض» دي په دې موضوع کي دپيغمبر عليه السلام

## د افغانی جهاد

# خارق العاده پیښې

مؤلف: «بهار» احمدزی

کابل ۱۲/۱۱/۱۳۷۲ هـ ش

سره شپې له خواتر ډیر ناوخته پورې ناست وو چې کله رخصت شو نوتیاره ډیره زیاته وه په لارې تګ ورته مشکل شو له دواړو سره په لاسونو کې همساګانې وې نو دیوه همساڅخه رڼائې ښکاره شوه چې دواړو پرې لاره لیدله کله چې سره جدا شو دبل ملګري له همسا څخه هم رڼا یې ښکاره شوه اوهر یودخپلې همسا په رڼا ئې کورته ولاړ .

مشکوة صفحه ٥٤٤باب الکرامات .

نودلرګې څخه دومره رڼائې ظاهرول چې لارپرې ښکاره شي کرامت دی .

دابن منکدر په روایت :

حضرت سفینة «رض» چې دپیغمبر علیه السلام خادم وو دروم په ځمکه کې دمجاهدینوله لښکر څخه غلط شو لاره ترینه ورکه شوه ، یوه خوا اوبله خوائې منډې وهلې ناڅاپه له زمري سره مخامخ شو زمرې ته غږ کوي یا اباالحارث زه دپیغمبرعلیه السلام خادم یم دمجاهدینو لښکر څخه پاتې شوی یم لار رانه ورکه ده ته دلارې رهبرې راته وکړه ، زمري راغی له ډیرې خوښحالی ئې لکې ورته وشرنګوله اوبیا دده تر څنګه روان شو هم ئې دلارې رهبري ورته کوله اوهم ئې دده حفاظت کولو ترڅو چې نور ځناور ورته ضررونه رسوي ، تر هغه وخته پورې دده په خدمت کې روان وو چې دمجاهدینو لښکرته ئې تسلیم کړو نو بیاترینه واپس خپل ځنګل ته رخصت شو .

مشکوة باب الکرامات صفحه ٥٤٥

نودزمر ی غوندې ځناورمنقاد کیدل اوبیادحضرت سفینة «رض» په پشنهاد پوه کیدل اوبیا دلارې رهبرې ورته کول داکرامت دی .

***

## پس له مرگ څخه دکرامت اومعجزی په حق کی:

دابی الجوزاپه روایت په اهل مدینه ژباندی سخت قحط راغی بارانونه پری بند شول دمدینی منوری خلق حضرت عایشی «رض» ام المؤمنین ته راغلل اودغه شکایت ئی ورته وکړ وام المؤمنین وفرمایل چی دپیغمبر علیه السلام دقبر چت لپاسه دیوی دایری په شکل سوری کړی چی دپیغمبر علیه السلام اوداسمان په منځ کی حائل پاتی نشی ، هغوی دهدایت مطابق هغه رنګه وکړل ښه باران وه شو ، اوښان څرب شو ، په ځمکه ګیاګانی زرغونی شوی هغه کال ته به خلکو عام الفتق یعنی دڅرب والی کال ویلو .

مشکوة صفحه ٥٤٥باب الكرامات

بل ځای بی بی عائیشه فرمائی : چی هرکله دحبشو پاچا یعنی نجاشی وفات شو نوموږ به خپل منځ کی داویل چی همیشه :ه چی دنجاشی په قبر نورلیدل کیری ، یعنی دنجاشی پاچا له قبر څخه نور پورته کیری .

مشکوة صفحه٥٤٥باب الكرامات

نودټول بیان خلاصه داده چی یو مجاهد دخدای «ج» درضا په خاطر اودکلمة الله داعلی په خاطر دمبارزی عملی میدان ته ددښمن مقابل کی سنګرونیسی اوپه دی پاك نیت په دی سنګرکی شهید شی نو دکراماتو خاوند دی که دکرامت کومه علامه ئی ژوندیوته ښکاره شی دمنلو وړده اوکه ښکاره نه شی هم دعزت خاوند دی .

تردی زیات کرامات به څه وی چی یو زلمی دپیغمبر علیه السلام له وفات څوارلس سوه کاله وروسته دخدای پاك په مینه ، محبت اودوستی که دومره مست شی چی محبوب عیال دفقر اوافلاس په بازار کی بی سرپرست پریږدی

اودئ خپل محبوب حیات اوځان دخدای «ج» دامر مطابق قربانوی چی همدادیو مجاهد فی سبیل الله اولین کرامت دی .

دوهم کرامت دادی چی زمونږه په حق کی له یوی روپی حخه زیاته وینه که په بدن یا جامعه پریوزی لمرنځ پری نه کیږی ؛ اودشهید په حق کی وینه تر اوبوزیاته پاکه ده ، داځکه چی دایمان سره ابتلا لازم ده ، خلق همیش دپاره دوه جنبی دی یوه جنبه درحمن ده بله جنبه دشیطان ده ، لکه څنګه چی خدای پاك ارشاد کوی :

الذین امنوا یقاتلو فی سبیل الله والذین کفروا یقاتلو فی سبیل الطاغوت .

هغه کسان چی مسلمانان دی ، ایمان ئی راوړی دوی جنګ کوی په لاره دخدای «ج» کی اوهغه کسان چی کافران دی دوی جنګ کوی به لاره دشیطان کی .بس محبوب ترین اوویر غوره غوره عمل خدای «ج» ته پس له ایمان څخه دخدای «ج» په لاره کی جهاد کول دی .

حضرت پیغمبر علیه السلام حضرت ابوذر«رض» ته فرمایی :

علیك باالجهاد فه نه رهبانیة امتی .

یعنی په جهاد کولو درته توصیه کوم ځکه دازمادامت رهبانیت اوګوشه نیشنی ده .

حتی چی جهاد دټولو اسلامی عباداتو ددنګو غرونو هغه لوړه څوکه ده لکه څرنګه چی دالله رسول فرمائی :

رأس الامر الاسلام وعموده الصلوة وزروة سنه مه الجهاد

ددین سراسلام دی اوستنی ئی لمونځ دی اوهغه لوړه څوکه یی جهاد دی .

جهاد هغه حقیقت دی چی له خیر اوبرکت څخه ئی هیڅوك سترګی ند
شی پټولی ، جهاد هغه عزت دی چی دمسلمانانو پت پری ساتل کیږی .
جهاد هغه شرف دی چی دانسانی کرامت مدارج لاپسی لوړ وی خودجهاد
لپاره ډیر مراتب دی چی لوړه رتبه دجهاد ( الجهاد باالقرآن والقلم ) یعنی
جهاد په قرآن اوقلم سره اوچته مرتبه دجهاد ده ځکه چی دا جهاد دایمی دی .
لکه څنګه چی خدای «ج» خپل رسول ته ارشاد کوی .

فلا تطع المنافقین والکافرین وجاهدوهم به جهاداً کبیراً

دکافرانو اومنافقانو مراعات مکوه له دوی سره جهاد وکړه په دی قران سره
جهاد لوی . داځکه لوی جهاد دی چی دتوری اووسلی اثر په یو شخص باندی
لوېږی هغه هم په بعضی اوقاتوکی لکین دقرآن اودقلم اثر داسلام په ټولو
دښمنانو په هر ان اوپه هروخت کی پریوزی .

نوپه دی عین حال دهجرت اوجهاد کی چی په مسلمانانوباندی داسلام
ددښمنانوله خوا هرقسمه سیاسی اونظامی ګډ عملیات شروع دی نو مسلمانان
جهاد باالقرآن اوجهاد باالقلم ته ضرورت لری .

نوپه دی حقله چی مادمحترم داکتر صاحب دیدار« احمدزی» لیکل شوی
اوراجمعه شوی حکایات اواخبار دافغانی شهیدانو اومجاهدینو کرامات
سرترپایه مطالعه کړل دومره مؤثر دی چی هرزلمی ئی مطالعه کړی داسی به
ئی مست کړی چی فوراً به جهادی جذبه په ده باندی غلبه کوی اوسنګرته به
ځان رسوی ، له بله پلوه به دخپل ځان داصلاح اودنیت دصفائی کوښښ کوی
، ځکه چی نیت صفانه وی دجهاد څخه دخدای «ج» درضا مطلب نه وی

نوهیځ اجر ورته نشته اونه ورته دغه کرامات شته بلکه دعذاب مستحق گرځی . لکه پیغمبرعلیه السلام چی فرمائی :

تعس عبد الدرهم لتعس عبدالدینار ، تعس عبد
القطفة ، تعس عبدالخمعة لتعس وانتکــس واذا
شیك فلا انتقش واذا اعطی رضی واذامنع سخط

دپیسواو تکو ، جامو اوکمپلو بندگان دی هلاك شی اوتباه دی شی هلاك اوتباه اوسرپه ځیری دی شی اوپه پښه ئی چی اغزی لاړشی ترینه خیژی دی نه ، ددی خلکو خوحال دادی چی کله څه ورکړل شی نوخوشحاله وی ، کله چی پری باندی بندشی نوخفه اوغمجن وی .

نوداسی کسان چی دجهاد په سنگرکی وی خونیتونه ئی غلط وی نوداسی کسانو ته دالله «ج» رسول «ص» سنیری کړیدی ، خدای «ج» دی دموجوده مجاهدینو نیتونه صحیح کړی اوځوك چی شهیدان شوی وی هغوی ته دی خدای پاك دشهادت لوړ مقام لاپسی لوړ کړی .

څرنگه چی ډاکترصاحب دیداردجهادپه سلسله کی دعملی جهادسرگرم مجاهداومسؤل دی په دی توگه دقلم اودعوت په لحاظ یو فصیح ژبی لیکوال اوادیب دی،چی دروان مقدس اسلامی جهاد په اړوندئی شپږبیلا بیل کتابونه په پښتو ژبه زما له نظر څخه تیر شوی دا دهغو تالیفاتو په تعقیب په پښتو ژبه په نشرکی دهغه یوبل کتاب دی چی انشأالله دټولو مجاهدینو ، مهاجرینو اوپښتولوستونکو لپاره به خیر ورسوی ، دادږوان مقدس اسلامی جهاد په فرهنگی سنگر اومبارزی کی یوپه زړه پوری زیاتونه ده چی د شهیدانو په مناقبو اوکراماتو خبری کوی . خدای پاك دی ددی ورورډغه سعی په خپل دربار قبوله کړی .

آمین ثم آمین

( مولوی معین الدین )

دافغاني جهاد

# خارق العاده پیښې

دکتاب نوم : دافغاني جهاد خارق العاد پیښې
ټولوونکي اومرتّب : دیدار « احمدزي »
کچه : ٦×٤
دچاپ تعداد : یوزر (١٠٠٠) ټوکه
دیوټوک بیه : ( ١٥ ) کلداري
داخیستلو ځاي : ټولي کتابخاني
کمپوزر : وحیدالرحمن ( تره خیل )

په بل وارچاپ کې دهرچارالیزل شویو مؤثقو واقعو په ضمیمه کولو ویاړو

## دشهید اومجاهد دکرامت په ارتباط شك نه دی پکار

څرنګه چی دشهید اومجاهد دکرامت په ارتباط شك کوڵ نه دی پکار خوبیا هم زه دموضوع په ارتباط دتفسیر اوحدیثو په رڼاکی څو دلایل راوړم البته دزیاتی لیکنی اوتبصری وخت می پیدا نکړ ځکه چی مصروفیتونه اوکارونه زیات اووخت کم دی په هر لحاظ وګوروڵاندی واقعات چی پخپله به ستاسی قناعت پری حاصل شی .

دحضرت معاویه صاحب په زمانه کی داحد په شهدا وو دنهرنقشه راغله معاویه صاحب ، امر وکړ چی شهیدان وباسی نوکله ئی چی شهیدان ایستل دیوه شهید په پښه تسکوره ولګیده نووینه ورڅخه وبهیده حال دا دی چی په دی شهیدانو پوره څلویښت کاله تیر شوی وو .

بله واقعه داسی راځی چی په یوه قبر کی دوه کسه شهیدان پراته وو اویو ځای ښخ شوی وو په دوی کی یو شهید په خپل زخم باندی لاس ایښی وو کله ئی چی لاس له زخم څخه لری کړل شو نووینه ورڅخه وبهیده چی په دی هم تخمیناً څلویښت کاله تیر شوی وو اوداهم داحد له شهیدانو څخه وو .

ددی دواړو واقعاتو پوره تفصیل په تفسیر مظهری کی راغلی .

اوس به راشو دحدیثو په رڼاکی دمجاهد فی سبیل الله کرامت اومرتبی ته ، وګوری دبخاری شریف څخه یوه واقعه چی څه حکایت کوی :

دهجرت په پنځم کال رسول اکرم «ص» لس نفره دحضرت عاصم «رض» په مشری مکی معظمی ته ولیږل [redacted] ترڅو هلته دکفاروله حال احوال څخه خبر ګیری وکړی اورسول اکرم «ص» ته احوال راوړی خوپه لاری کی ورته

دکفارو دقبیلو څخه څو کلی مخی ته راغلل اودوی ورسره جهاد شروع کړ ښه جنګ ئی وکړ خوبلاخره دهغوی سرګروپ حضرت عاصم «رض» سره داووکسانو نورواصحابانو په شهادت ورسیدل اونوردری کسه صحابه کرام ژوندی ونیول شول چی یو له هغو دری کسو څخه حضرت خُبیب نومیده چی ئی دحارث په زامنو خرڅ کړ البته د دوی پلار په یوی جګړی کی دحضرت خبیب صاحب په لاس قتل شوی وو چی حارث کافروو ،

نوحضرت خبیب صاحب ئی بندی کړ اوپه یوی داسی کوټه کی ئی واچوو چی هیڅ سوری ئی نه درلوده یوازی دړوړی ورکولو په وخت کی به ئی دروازه ورته خلاصوله ، کله به ئی چی دړوړی وروړلو په وخت کی ورته دروازه خلاصه کره ، نو په مخ کی به ئی تازه انګور ایښی وو په داسی حال کی چی دانګورو موسم هم نه وو ، کله به چی له ده نه دانګورودراتلو پوښتنه وه شوه نو ده به ویل چی :

هذارزق من الله

یعنی دارزق راته دالله تعالی له لوری دی .

په هر ترتیب دشهداوو اومجاهدینو کرامات داسلام له پیل څخه ترننه پوری ښیخی زیات دی مائی دلته دمشت نمونه خروار څوګمونی راوړی هیله ده چی دقدرمنو لوستونکو تسل به پری شوی وی ، مادافغانستان په روان مقدس اسلامی جهاد کی د شهیدانو اومجاهدینو دکراماتو په باب یو شمیر واقعی څه په خپله لیدلی او څه می هم له خپلو شاګردانو ، مجاهدینو اودوستانو څخه اوریدلی چی انشاء الله دمحترم ورور ډاکتر صاحب دیدار په لیکل شوی اثر کی به مرله نظره تیری شی .

نودی ورور چی ددی کتاب په ترتیب اوراجمعه کولو اودواقعاتو په لیکلو کی کوم زیار ایستلی دا واقعاً دقدرورړ دی ، ډیر په زړه پوری اوزړه راښکونکی واقعات ئی جمعه کړیدی چی دافغانستان دمجاهدینو لپاره په ډیر مؤثر تمام شی .

والسلام .

ستاسی ورور مولوی سیدحکیم

دحزب اسلامی دقضادریاست غړی

## داواقعات له حقیقت څخه لری نه دی

الحمد لله رب العالمین والصلوة والسلام علی سیدنا ونبینا علی اله واصحابه ومن دعی بدعوته اجمعین الی یوم الدین

قاتلوهم یعذبهم الله وینصرکم ویخزهم

ویشف صدورقوم مؤمنین.

دمحترم ورورداکتر صاحب دیدار « احمدزی » لیکنه چی دمجاهدینو دسعادت اوکرامت په برخی کی لیکل شوی په زړه پوری اوزړه راښونکی پیښی اوواقعات ئی له حقیقت څخه لری نه دی .

. دجیدو اومتدینو مجاهد وعلماً کرامو تبصرواو تقریظونونوږهم ښه ښائیست ورکړیدی .

که څه هم په دی موضوع په عربی ژبه کی دشهید دکتور عبدالله «عزام» له خوا د( عبرویصائر للجهاد ) په نوم د شهیدانو دکرامت اومجاهدینو دخارق العاده پیښو په باب یو کتاب تألیف اوچاپ شوی خودپښتو اودری په

ساده اوسلیسه ژبوکی تراوسه پوری ماته داسی یو کتاب چی دپورته موضوع شاهد وی په نظر نه دی راغلی داالبته دمؤلف صاحب یو ابتکار نظر اودافغانستان داسلامی انقلاب لپاره یولوی خدمت دی ، چی دمؤلف دغه ابتکار نظریه انشأالله دمجاهدینو دروحی په پورته کولو کی ډیر مؤثر ثابت شی .

ددی ورور دسعی اوکوښښ اجر اوبدله دلوی اوتواناخدای «ج» له دربار څخه غوښتونکی یو .

دافغانستان داسلامی مجاهدینو دکرامت ثبوت دټولو نه مخکی دوحشی روسانو چی دمادی حیثیت نه ورته جهان سپرپاور قدرت ویلی شکست اوماته ده چی دالله په امداد دافغانی مجاهدینو په ذریعه ورسره مخ شول چی داتصورهیڅ یوی عقیدی اوانسان دماغ ته نه راته خوپه اتکاء اوتوکل دلوی الله «ج» اوپه خپل اخلاص زمونږ اسلامی اوغیورو مجاهدینو ، روسانو ته ماته ورکړه چی دا په قول دشهید محمد ضیاء الحق دپاکستان صدر دشلم قرن معجزه ده نودا به غیر له کرامت نور څه وی .

بلی ! دا چی قرانکریم اوسنت شهدا ووته ژوندی وائی انکار له دی حقیقت څخه کفردی ایا داکرامت دی اوکه نه دی ؟ اودادمجاهد فی سبیل الله سعادت دی اوکه نه دی ؟ چی ژوندی ئی هم ژوندی دی اومړه ئی هم ژوندی دی ، جهاد هغه دخیر اوبرکت کارته وائی چی دمسلمانانو عزت اوکرامت په دی ساتل کیږی اوکرامت مجاهدین نور انسانان مکرم کوی .

په اخره کی یوواربیا هم وایو چی محترم ورور« دیدار» ته دی الله پاك جل جلاله لوی اجر ورپه برخه کړی چی داقلمی جهاد ئی کړی اودا کتاب ئی

خپرولوته اماده کری .

په لاندی فارسی بیت سره خپلی ویناته خاقه ورکوم

حروفش چهره آراء گلستان

سطورش رونما سنبلستان

(مولوی عزیز الرحمن « منیب» دبده بیری دکمپ خطیب )

## دغه کرامات داحد دشهیدانو دکراماتو سره سمون خوری

الحمد الله رب العالمین والصلوة والسلام علی سیدالانبیاء والمرسلین محمدوعلی اله اجمعین .

امابعد ! ان الله الشتری من المؤمنین انفسهم واموالهم بان لهم الجنة .

څرنگه چی دښاغلی محترم مجاهد وروړ دیدارخان لیکنه چی دافغانستان دمجاهدینو اوشهیدانو بعضی کرامات چی ماولیدل واقعاً له حقیقت څخه لری نه دی څکه چی الله «ج» په قرآن کریم کی فرمائی :

ولا تقولو لمن ایقتلو فی سبیل الله اموات

بل احیاءٌ ولکن الاتشعرون - « الایه »

یعنی هرهغه څوك چی دالله په لاری کی شهیدان شوی وی هغوی ته مړه مه وایاست بلکه هغوی ژوندی دی که څه هم تاسو دهغوی په ژوند نه پوهیږی .

په دی کی شك نشته چی جهاد یوه جامع کلمه ده اوجهاد په لغت کی جهد اومشقت گاللو ته ویل کیری اوجهاد بعضی علماء په پنځه ټسمه تعبیروی :

۱- جهاد لسانی ، ۲- جهاد قلمی ، ۳- جهاد بدنی ، ٤- جهاد مالی ، ٥- جهاد قلبی .

لکه چی الله «ج» فرمائی :

جاهدو فی سبیل الله حق جهاده

په دی ایت کریمه کی اشاره دی خبری ته شوی چی باید مسلمان خپل توان طاقت اوقوت ددښمن دناکامی لپاره په کار واچوی .

لکه څرنگه چی داکتر صاحب دیدار په خپل قلمی جهاد کی دافغانستان دنتیو شهیدانو اومجاهدینو داسی کرامات نقل کړی چی هغه دبدر دغازیانو اوداحد دشهیدانو له کراماتو سره سمون خوری .

دمثال په توگه حضرت انس بن نضر«رض» چی د بدرله جنگ څخه پاتی وو داحد په جنگ کی ئی په ډیر شوق اوذوق سره شریکت وکړ کله چی جنګ ښه گرم روان وو نو دده ترڅنگ یوبل صحابی حضرت سعید بن معاذ «رض» تیریده ورته وویل چی چیرته ځی زمادی قسم په خدای «ج» وی چی داحد له غره څخه دجنت خوشبوئی راځی سمدلاسه یی توره واخیسته اودکفاروپه منځ کی ننوت ترهغو جنگیده چی شهید شو .

داوه دیوه مجاهد هغه واقعه چی په ژوندون ئی دجنت بوی حس کړی وو چی دکتاب دلیکنی په تائید ددرنولوستونکو لپاره ذکرشو.

په اخر کی یوواربیا هم وایم چی الله «ج» ددی کتاب لیکونکی ته اوهمدارنگه نورو عملی اوقلمی جهاد کوونکوته اجر کامل ورکړی اوټولو لوستونکو اومجاهدینو وروڼو ته دعمل کولو توفیق غوارم .

( والسلام علیکم ورحمة الله وبرکاته )

( مولوی اسماء الحق دعبدالله بن عباس دمدرسی معاون )

# تړون

دافغانستان دمظلومو مهاجرينو ، مجاهدينو اوهغو شهيدانو په وياړ
چې بې اثرې يتيمان ، کونډې اوبورې ورڅخه وروسته پاتې دي ، لم
غم اووير څخه ډکې شيبې ورباندې تيريږي اوپه خپل ملك کې دمکمل
اسلامي حکومت له جوړيدو پسې ارمانجن دي .

مسلمه وينې شه سورکفنـي شهـيدان وگټه
هغوى نه پاتې کونډې ، بورې ، يتيمان وگـټه
نن کافران په هر مسـلم امـت ظلمـونه کـوي
مه کينه غلې خپل ناموس دين اوايمـان وگټه
غواړې کفارزمونږ ملي وحدت کـړي ډړې وړې
منگولي کلکې په قرآن کړه پاك قـرآن وگـټه
وخت ډير حساس دى دښمنان هم دسيسې جوړوي
پام غلط نشې اى « ديداره » مظلـومان وگـټه

بسم الله الرحمن الرحيم

## داډول ليکني او اثار زمونږ دوياړلي جهاد ستون
## فقرات تشکيلوي

رښتيا هم چي ايماني قوت ، جذبه اوهدفمندي انسان ته دژوند په مختلفو ابعادو کي خاص تحرک وربښي ، ديد اوبصيرت ئي وسيع اوپراخه وي او دژوند ټولي قضاياوي په دقت رسائي اوسنجيدگي سره څيړي .دومره تيزبين اونازک خيال وي چي هيڅ شي ئې له نظره نه لويږي .

هو : دحق سنگر داران مومن مجاهدين بل الخاصه هغه کسان چي په يوه لاس کي کتاب اوبل کي ئې ټوپک دي ، که له يوې خوا دکفر اوکونيزم عملي مقابله کړي اوکوي دعقيدي اوايمان سنگر ئي ټينگ ساتلي له بل پلوه ورځني پيښي اوواقعات په دقيقه توگه سره تعقيب ، ثبت اوپه ښکلي اندازکي انځور کړي دي .

داشمير مجاهد ليکوالان چي داوږده لمبو او دبارودو په دود کي دواقعاتو دليکلو اوثبتو لو لوړ همتي کړي دجهادي ادب اوفرهنگ په نړي کي يو ځانگړي اهميت اولو ړمقام لري .

دجهاد دصحني اوگرمو سنگرو وليکوالان دواقعاتو اوحوادثو عيني انځور گران دي . هغوي هغه څه جامعي ته وړاندي کوي اوراتلونکو نسلونو ته په ميراث سپاري کوم چي ددوي په وړاندي واقع اوپيښ شوي يعني هغوي دواقعيتو نو واقعي بازگو گران دي .

داډول ليکني اوآثار زمونږ دوياړلي جهاد دتاريخ ستون فقرات تشکيلوي ،دهغوي په ليکنو کي خود سازي اوتصنعات اصلاً وجود نلري ، حقايق ،

کماحقه اوپه خپل اصلي بڼه اوشکل سره وړاندي کوي .

د دارنگه لیکنو یو بل مهم خصوصیت دادي چي لوستونکي ځان دقضا یاوو اوواقعاتو په منځ کي احساسوي .

دادي دتوري اوقلم دخاوندانو له جملي نه محترم اومجاهد ورور داکتر صاحب دیدار « احمدزی » هغه ستریانه منونکي ادیب اودعوتگر مجاهد دي چي کله هم آرام ندي کړي ، عمرئي په سنگرکي تیر کړي دوسله وال جهاد سره جوخت ئی علمي اوداستفادي وړجهادي لیکني کړي ، دجهادپه هراړخ یي پوخ نظر اچولي اویوڅه ئی پري لیکلي دي .

دنوموړي ورور دامجموعه هم یو باارزسته اثردي اوراغونډول ئي هم واقعاً مشکل کار ، زیاته هڅه اوهاند غواړي ، داچي محترم داکتر صاحب دامحنت گاللي دخورو وروراولري ، لري منابعو څخه ئی معلومات ترلاسه کړي نو دهغه دازیار گالنه دزیات قدر وړ ده الله «ج» داجر ورکړي .

کله هم چي سړي ددي مجموعي هره برخه گوري دآرمان په زړه شهیدانو ددغه درانه امانت سرته رسول چي هغه په افغانستان کي دسوچه اسلامي حکومت جوړیدل اوقیام دي ، ځان پورروړي اودین دار ورته ښکاري اودادین اداکول غواړي .

زمونږ پاکو شهداوو په خپله وعده له خپل رب سره وفاوکړه اودجهاد دروند امانت ئي مونږ ته په پوره پاکي اوامانت داري سره په میراث پریښود اوس زمونږ فرض دي چي دا امانت به په صداقت اورښتینولي سره سرته رسوو اودخپلو ویاړ لو شهیدانو لار به تل روښانه اوځلانده ساتو اوهیچاته باید چي دشهیدانو په پاکو وینو دلوبو کولو مجال ورنکړي شي اودغرض ناولي لاسونه ورلنډ او دا امانت باید په پوره ایمانداري منزل مقصود ته ورسول شي . په درنښت .

( عبدالغني «مصمم» )

دبدار «احمدزی» دلوګر ولایت دازرې ولسوالي ببروکلي اوسیدونکی چې په ۱۳۳۰ هـ ش کال ئې دې فاني دنیا کې سترګې پرانستلي د مسجدله سبق علاوه په ۱۳۴۰ کال دازرې په ابتدائیه ښوونځي کې شامل اوپه ۱۳۴۵ کال له دې ښوونځي څخه فارغ اودکابل په خوشال بابا لیسه کې دلیلي په توګه شامل شو چې په ۱۳۵۲ کال له دې لیسې څخه په لمړۍ درجه فارغ شو اود کانکورله ازموینې وروسته په ۱۳۵۳ کال دکابل پوهنتون دعلومو په پوهنځي کې داخل شو خودهغه ذوق اوعلاقې له مخې چې دطب او طبابت له ربښتې سره ئې درلوده دعامې روغتیا دانستیتوت ددرمل جوړولو څانګې ته تبدیل اوپه ۱۳۵۷ کال ئې په همدې مسلک کې دفراغت سند ترلاسه کړ، اوپه ۱۳۵۸ کال ئې دابن سینا په عاجل روغتون، صحت دماغي اوجمهوریت په روغتونو کې دندې سرته ورسولې دثور دکرغیړنې اوالحادي کودتا اوپه کابل کې دکمونستي رژیم په رامنځته کیدو سره ئې دخاد دجاسوسانو اونوکرانو له لاسه ژوند تریخ، دتعقیب اوڅارنې لاندې ونیول شو، دکابل دمرکزي حوزې دمسئولینو اوورونو په مشوره په ۱۳۵۹ کال هجرت ته مجبور اوورورګاونډي هیواد پاکستان ته ئې هجرت وکړ چې په ۱۳۶۰ کال دازرې ولسوالي داحد قرارګاه دصحي مسئول په توګه تعین شو چې بلاخره په ۱۳۶۷ کال دمسئولو مقاماتو اوورونو په مشوره ورته ددې قرارګاه معاونت هم وسپارل شو.



## دبری وخت

وتړی ملا چــی دسیسـتی نـن دښمـنان جــوړوی
شرق خوشوختم غرب له تاسی غــلامان جــوړوی
مسلمان هرچیــرته واحداومتــحد مـــلــت دی
دغه بیــلتون اوګــډوډی ټول کافــران جــــوړوی

په بل وارچاپ کي دهرچاړالیزل شویو
مؤثقو واقعو په ضمیمه کولو ویاړو

دیدار « احمدزی »

## دکتاب د چا پولو لنډ جریا ن

کله مې چې دجهاد خارق لعاده پیښوپه باب دغه واقعات راجمعه اوترتی
کړل نودچاپولو په باره کې مې له یوتعداد مخلصو اونیکو ورونو سره مشو
وکړه چې هغه هریوه راته دچاپولو تاکید کولو خوبلأخره زما تصمیم هم
شو چې باید ارومرو داکتاب چاپ ته وسپارم خو دکومې لارې ؟
که ئې په شخصي توګه چاپ کړم ډیر لګښت پرې راځي ځکه چې مخکې
مې هم درې ، څلور کتابونه په نظم کې چاپ کړي وو اومصارف ئې ډیر بن
راته معلوم وو .
اوکه ئې دتنظیم له لارې چاپ کړم نوایاد هغوی له معیاراوپالیسي سره
سروخوري اوکه څنګه ؟ اوبیا به څومره وخت پرې لګیږي ؟ چې البته له د
لارې هم مامخکې د« سنګرانګازي » په نوم یو کتاب چاپ کړی وو چې
چاپولو ئې ډیر ستړې ستومانه شوم .
په هرترتیب نیت مې داشو چې راځه یو ځل بیا ځان ستړی کړه مالي
بودجه به دې هم بچت شي ،تنظیم ته ئې حواله کړه ، بلأُخره دقانوني مرحل
دطې کولو په خاطر مې دحزب اسلامي دنظامي چارو دریاست دلوګر ولایت
امریت ته مراجعه وکړه اوهغوی هم د ١١٤٦ نمبر مکتوب په اساس پ
٦٩/١٢/١٥ نیټه په لاندې شرحه دحزب اسلامي دارشاد اوفرهنګ ریاست
په عنوان مکتوب راکړ او وه ئې لیکل چې :

برادر مجاهد ومعاون قرار گاه احد ولسوالی ازره ولایت لوگر داکتر صاحب دیدار یك اثر علمی وفرهنگی بنام ( دافغانی جهاد خارق العاده پیښې ) غرض تشویق مجاهدین به رشته تحریر دراورده است اینك ذریعه نامه هذا معرفی میگردد تا در مورد چاپ اثر برادر نامبرده طبق اصول اجرا ءت نماید .

بااحترام

نیك محمد ایوبی

امیر ولایت لوگر

کله می چی په پورتنی شرحه مکتوب دارشاد اوفرهنگ رئیس صاحب ته ورور نوهغه پری داسی احکام ولیکل :

آمریت محترم نشرات !

نوشته برادر رابه هیئت بسپارید تابعد از مطالعه اظهار نظر نماید .

دلجو « حسینی »

رئیس ارشاد و فرهنگ

له دی وروسته دنشریاتو امریت ته ورغلم هغه هم دهیئت دتعین لپاره ولیکل چی :

محترم لتهون صاحب اومحترم ملنګیارصاحب دورور کتاب ولولی اودچاپ په برخه کی ئی نظر ورکری .

« فدامحمد « فائض»

دنشریاتو مدیر

په دی توګه می خپل لیکل شوی اثر اواحکام محترم ورور فضل مولا « لتهون » ته وروسپارل اوهغه هم راته دوه اونی دمطالعی لپاره وخت راکړ کله